۷۸۶

# تفسیرِ حبیبی

## پارهٔ اول



مُصنّفہ
حبیبُ الرحمٰن

دار التصنیف والتالیف روستم مردان

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

موږ قرآن د نصیحت د پاره آسان کړے دے څوک شته چه نصیحت واخلي

میری قسمت سے الٰہی پائیں یہ رنگ قبول

پھول کچھ میں نے چنے ہیں ان کے دامن کیلئے

(پشتو)

# تفسیر حبیبی

مُصنّفہ

(مولانا) حبیب الرحمان بن مولانا محمود الحسن مرحوم

فاضل دیو بند، مولوی فاضل، منشی فاضل

میٹریکولیٹ، دار التصنیف، روستم، ضلع مردان سرحد

(سرحد الیکٹرک پریس پشاور)

ھدیہ :- دو روپے آٹھ آنے

# مفصل فهرست جلد اول تفسير حبيبي

بسم الله الرحمن الرحيم

**خُطبَه** :- الحمد لله الذی اتانا من لدنه رحمة فهیأ لنا من امرنا رشدا و انزل لنا من امره روحا یحیی به قلوب السعداء و یصیر للاشقیاء شهابا رصدا و ارسل سید الرسل بالرشد والفلاح صلی الله علیه وعلی اله واصحابه واتباعه اجمعین **امّا بعد!** زه حبیب الرحمن بن مولانا محمود الحسن صاحب مرحوم عرض کوم چه د اسلام خیرخواهی په هره زمانه او هر ملک کښې د هر سړي د پاره حبل ده، کله کله د ژبې وینا کانې اثر کوی او کله قلم د تورې په ځاے استعمالیږی، د اسلام د خدمت د پاره په مختلفو حالاتو کښې مختلف قسم خادمان پیدا کړے شوی دی، د عباسیانو په زمانه کښې د یونانیا حکمت او د رومیانو فلسفې په اسلام حمله اوکړه او د اسلام تعلیم زهرجن کړه، پدے وجه د علم کلام عالمانو د قلمونو نه د نیزو کار واخستو، دا داسے وخت وو چه د رسول ﷺ ملګری او خالص عرب نه وو پاتې شوی، عرب او عجم، خلافت او ملوکیت ګډ وډ شوے وو، هرچا به په قرآن شریف خپل فلسفیانه اعتراضونه کول، په دغه وخت کښې قلمی خدمت د علماء جرأت، د حکومت او د هنګامے د رانځے ځاے نه بے پرواهی د اسلام د حفاظت سبب جوړ شه

دے عالمانو ډیر ډیر صبر اوکړه بلکه دوئ په بغداد او اندلس کښې په سوونو دنیوی علمونه خپلو او پردو ته اوښوده، علم ریاضی، علم مناظر (فوټوګرافی، نقشه نویسی) دوئ جوندی کړه، د جبر و مقابله او د ستورو د رفتار تحقیقات دوئ اوکړه، د حساب او هندسے اصول باقاعده قائم کړه، د آبادئ او زمیندارئ استاذان ثابت شو، د زمکو میچ د غولونه ول دوئ ایجاد کړه، د جهاز د ستورو په رفتار چلول د مسلمانانو برخه وه. د هوا، اوبو، زمکے او اور عجیبه حالات دوئ معلوم کړه. د معدنیاتو سرو سپینو د جواهراتو د اخکو طریقے په غرونو کښې د چینو پته دوئ اولګوله. د ښکلو علم د څناورو اقسام د کیمیا

په علم کښې اهل اسلام استاذان وُو، منطق نوے فلسفه چې هغه ته علم کلام والئ دوی قائم کړه. تهذيب الاخلاق په ښادو نوکيښ د استوګنے طريقے د کور د سياست حال، کوم چې نننۍ فلسفيان هم منی دوئ قائم کړه، د هارون الرشيد په زمانه کښې دوو عالمانو د کوفے او د سنجار په ميره کښې په پيچ پڅے سره دا معلومه کړه چې د زمکے قول گير سلپير شت ييم زره ميله دے، هيئت الله بغداد ئ د رفتار انداز ه اوکوله او په دے طريقے سره د ترپو او توپکو جوړښت د ده په زمانه کښې اوشه. د علم طب کومه ترقی چې په دغه زمانه کښې شوی ده د هغے د تفصيل د پاره پوره کتاب پکار دے،

ځما د دے بيان نه دا مطلب دے چې د يوروپ د خلقو دا موجوده ترقی ډيره ډيره د اوږد کالو عمر لري او دا د مختلف ملکونو د خلقو د کوشش نتيجه ده په دے کښې د روم او د مصر اهل اسلام هم ئې يا ډير شريک دی. دا د لنډن خصوصيت نه دے بلکه فرانس، جرمنی او روس وغيره ټول په کښې حصه دار دی. د دے ايجاداتو اولنی اصول اهل اسلام ايجاد کړی دی موجوده مختلفو ملکونو ورله د حکومت او طاقت په مناسب ترقی ورکړه. دا ترقی د يو قوم سره خصوصيت نه لري په هره زمانه کښې مختلفو قومونو چې طاقت موندلے دے نو ترقی ئې کړيده د يوروپ اوسنی محققان د اهل اسلام په شاګردئ قايل دی. د فرانس وزير اعظم په يو تاريخ کښې ليکلی چې د يوروپ خلق د ناپوهئ په کوهی کښې پراته وو چې اتفاقاً د امت اسلاميه رڼا راغله او د علوم مرکزونه ئې جوړ کړه. بغداد، مصر، دمشق، قيروان، بخارا، فارس، غرناطه او قرطبه کښې د علم دريابونه د خپلو پوره د پاره يوشان فيض ورکونکي شو. د يوروپ هغه ناپوهه خلق هم د غلته عالمان شو او بيائې خپل وطن کښې د علم رڼا خوره کړه. دا مدرسے خو زموږ د هندوستان د مدرسو په شان نه وے چې کښې

د کاریگری او د دنیوی ترقئ ټول علوم هم خود ے شو'

خلاصه دا ده چه مونږ پښتانه نړا دخزے په نیږ نګیا نو دے یمانی محلوبین وا و د دے ثبوت دادے چه مونږ د هغوی لباس، د هغوئ کتابونه، د هغوئ تعلیم او د هغوئ هره ادا نردے حد ده چه د هغوئ د حکومت هغه بے کاره او جنګیا نے طریقه او د هغوئ هسے ازادی خوښه وه او ځمونږ سخه د دے چارے غیر معقول دلیل دادے چه دوی ترقی یافته دی، تردے حده خو به سړی صبر کړے وے لیکن اوس دوئی سره مینه دومره زیاته شوه چه ځمونږ دا عقیده پیدا شوه چه دا مذهب اسلام د ترقئ په لاره کښې مانع دے د مذهب عالمان، د مذهب مدرسے، د مذهب نخ لښتانے بے مطلب هستی او د دهوکے ذریعه اُګنړلے شوه او دا خیال په عامو جلسو په رسالو او ټولو مقالو کښې رِ زتو ورځه ځمونږ په پیړ نګیا نو مینن خلق ښکاره ښکاره وائی هم لیکی او میا نوی

د دے غرض د پاره ما مختکښې د اهل اسلامُ دنیوی علمی ترقئ اُ نیکلے چه تاسو ته معلومه شی چه مذهب او دنیوی ترقئ مخالف شیزو نه نه دی. بلکه د قران عامل په ځان کښې هغه ژوند موهی چه د دنیوی ترقئ لوئے فلسفی او سائینسدان د هغه نه بالکل محروم وی. خودا تحجب به عواړی، یوا هل دل به مذهب پوهیږی ونکښې چه موجوده دنیوی ترقئ ته ګوری او موجوده مغربی اثرات چه ځمونږ په عامُ خاصُ خلقو کښې ښکاره وینی نو د خلقو به پښتو ادا سلام دوارو ورله جرا ورځئ او نه پوهیږی چه د دے سیلاب بند به څرنګ کیږی. حکومت طاغوتی دے تعلیم د فساد نه ډک دے د حکومت مشین لګ یادیږ د مغربی تعلیم یافته خلقو په لاس کښې دے. مال دولت اقتدار

بوله او پېره دمذهب نه د مخالفو خلقو سخته ده، او بل طرف ته د اسلام کمزورتیا ده. د اهل اسلام کس مپرسی ده دا مقابله هرڅه نتائج چه پیدا کوی پدے هرسرے پوهیږي شی. نعد بده بلا ده چه داخلق بد دسیتی ته ازادی وائی او دروغو ته اختیارتیا وائی دا هغه بدرنګی ده چه څوک نه ئے مینه محبت او دامن جوندبو ته او مونږ نقلیان مسلمانان پاتے شو.

نقلیانو مسلمانانو تردے حده پورے د یورپ د مختلفو خیالاتو تابعداری شروع کړیده چه په یورپی فیرنګی او هندوستانی خاندانی مسلمان کښې فرق نشی کیدے، او څونو د هرهندوستانی جماعت خیال د مرکز عرب نه د یورپ قبلے ته اوکړزیده، څوك د جمهوریت ونه نال کوی او بخپل عقلمند ئے سره په غریبو حکومت کول غواړی. او څوك په مذهب عمل کول د اقتصادی غریبیٔ دلرے کولو نه پس خوښوی څوك اړو د امذهب د مینځ اُباسی او د غریب او امیر په جنګ کښې سرګرم عمل دی. د خدائے نه انکار، ملائک حشر، نشر، ثواب او عذاب حلال او حرام، پاك او پلیت قول د خپل طبیعت تابع کړځوی پیغمبران حاکرف یوخه سرہ ی تدرے منی. څکه د هغه په سنتو عمل کول ورته څه ضروری نه ښکاری. ته به وائے چه داخونك مسلمانان دی؟ دا تولے خبرے خو د قرآن شریف په صفا ایتونو کښې راغلی دی، داخونك نه منی؟ روره! یقین اوکړه چه ئن روځ په ستهیجی په ممبر، پر مشرئ او معتبرئ کښې اکثر دغه قسم خلق دے او داهم وادره چه دوئ وائی چه که مسلمانان یونو حاکرت مونږ یُو. دوئ دے خپله فضولیاتو ته ترقی تحقیق، ازادی او عجیبه عجیبه نومونه کړدی. د مسلمانانو د دے کمزورتیا ذکر څه خبره نه ده چه ما اوکړه خو څما غرض د دے صاحبانو بے عزتی نه ده بلکه مطلب دا دے او دے

چه ځما په پښتو کښې د تفسیر کولو وجه دا ده چه دا څه لاره دا خو به خدائے را کړې وي دا ځائے مسلمانان چه دیته دا یورپي مسلمانان سادګان وائي. دوي دده زهر بلا اثرات نه پېژنې کول ضروري دي. ما ځکښې عذر کړے وو او اوس هم وایم چه زه او ځما علم او ځما عمل دده قابل نه دے چه زه په دا سے تفسیر او کړے شم چه هغه به کېدې څه قابل تعریف وي خو دومره به او شي چه د دغه عالمانو او دیندار مسلمانانو خیال به دے ضروري کار طرف ته پېښ اکرم او دا ځما د پاره کافي ده.

اے باری خدایه! ما نه پس بے تفسیر کښې هغه خبرے اُخیه چه صحیح وي ما د خطائي نه بچ کړه آمین، انت حسبي ونعم الوکیل

## سُوْرَةُ فَاتِحَةٍ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ سَبْعُ آيَاتٍ

د قرآن شریف ټول سورتونه پس دوه قسمه دي یو هغه چه په مکه معظمه کښې نازل شوي دي او دویم هغه چه په مدینه منوره کښې نازل شوي دي اول ته مکي او دویم ته مدني ویلے شي. سورة فاتحه مکي دے د دے سورة نومونه د خاص خاص مناسبتونو په وجه دي دي. "فاتحه" خو ورته ځکه وائي چه د قرآن شریف په اول اول کښې دا سورت دے. بل پراستونکے د مشکلاتو دے "شفا" ورته ځکه وائي چه دده سورت په لوستلو کښې د جسماني او روحاني مرضونو علاج دے. "اُم القرآن" ورته ځکه وائي چه د قرآن شریف ټول مضامین پس بے کښې جمع دي. تعلیم المسئله ورته هم وائي ځکه چه پس بے کښې د سوال کولو طریقه ښودلے شوے ده، "سبع المثاني" ورته هم وائي چه دا سورت شریف بار بار په مونځ کښې لوستے شي

## شان نزول

روایت دے چه حضرت رسول خدا صلے الله علیه وسلم یو روځ خپلے بي بي خدیجې

ته اووے چه زه ځان له نا ست یم نو زه څه اُواز و نه اُورم۔ بی بیؓ ورته اووے چه ته او ابوبکرؓ دواړه ورقه بن نوفل سخه لاړ شئ او ذکر ورته اوکړی دوئ ورقه سخه لاړه ورقه ورته اووے چه ته خه په تو چه سره دا اُواز و نه واوره چه څه اُواز دے۔ حضرتؐ چه راغے او خلوت کښې کیناست نو دا ئے واوریده چه بسم الله الرحمن الرحیم الحمد لله رب العٰلمین الخ

د وحی د نازلیدو په اول اول کښې امی نبی ته دا انسانیت په وجه دحیرانتیا عارضیل شه عجیبه نه ده د ورقه سخه تلل د هغه نه د څه زده کولو د پاره نه وو بلکه د هغه د اسمانی کتابونو د علم تجربه کار والے د دے سبب وو

# بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ط

شروع کوم په نامه د الله تعالیٰ چه روزی رسونکے او بخونکے دے

دا ایت ټهر سورة اول کښې بغیر د سورة براءت نه لیکلے شویدے د دے یو غرض خو د سورتونو په مینځ کښې فرق کول دی او بل پدے ایت سره تبرک حاصلول هم غرض دے دا ایت د سورة فاتحه یا د نورو سورتونو جزء نه دے دا مذهب د ابوحنیفهؒ دے او د غه وجه ده چه په جهریه قراءت کښې لبسم الله په جهر نشی ویلے او په نزد د امام شافعیؒ د فاتحے جزء دے او په جهر کښې لبسم الله هم ویلے شی پدے سلسله کښې د طرفینو دلیلونه شته خو د حضرتؐ نه او د خلورو یارانو نه پکښې یو طرف ته صراحتاً حکم نشته په سورة نمل کښې بالاتفاق د سورة جزء دے چه اِنَّهٗ مِنۡ سُلَیۡمٰنَ وَ اِنَّهٗ لبسم الله الرحمن الرحیم پدے سورة کښې خدائے پاک خپلو بندګانو ته پخپل جناب

کښې د حاضرېدو او د سوال کولو طریقه ښئي چه اول ځما ثنا او صفت اوکړئ او بیا ځما
عبادت اوکړئ او ځما نه مدد او غواړئ۔

د دنیا خلق همېشه یو اځې هغه شیزونه مني چه په ظاهر نظر کښې ښکارېږي۔ او دا ئې
هم خیال دے چه د دنیا ټوله ګټه او نقصان یو اځې ځما د کوشش نتیجه ده دا دواړه
خیالات غلط دي یو جهت خدائے پاک په مکمل کتاب کښې ولاړ ده او وے چه ځما یو ذات دے چه
تا ته نه ښکاري هغه الله تعالی دے۔ دے الله د دنیا ټوله کارخانه پیدا کړېده دے
د دے خالق او رازق دے د دے "الله" لفظ دا سے اثر دے چه څوک الله الله وائي نو د هغه
په کار کښې برکت پیدا کیږي۔ که تا په یو کوشش یو کار اوکړه او د الله نوم دې پرې واخست
نو ستا دا کار به هیسے لنډے بوچې وي۔ د بسم الله به اول اول کښې د دا ذریعه دا وجه
ده ځکه دا چه بت پرستو به د خپلے کمزورۍ او عاجزۍ په وجه کښې د خپلو بتانو نه
مدد نو نه غوښته۔ چا تبو نه ځان له معبودان کړي وو او دا سے به ئے وے چه بسم
اللات والعزی د لات بت او د عزی بت په نوم شروع کوم نو خدائے پاک ورته اووے
چه بت غریب او یو مړے عاجز به ستا څه مدد اوکړي دا سے وا به بسم الله الرحمن
الرحیم، ځکه په هر انسان باندے درے حالتونه راځي یو حالت ده د پیدا ایښو، نو مخکښې
دے بل د پیدا ایښ نه وروستو دے او بل پس د مرګ حالت دے د دے درے واړو
حالاتو په مناسب انسان ته تعلیم ورکړے شه چه اے انسان! الله یاد کړه دے
الله ته د نشت نه شته کړے دا الله یو اځې ستا خالق نه دے دا د دنیا ټول نظام
ده په قدرت کښې دے دا الله د دے قابل دے چه ته ورسره تعلق او محبت پیدا
کړے او نه ورته پناه یوه مینه صحبه اُلکوے د ده احکام په ځان جاري کړے که

دَ دے الله الله دا وظیفه دَ انسان په ژوند کښی داسے کیږی لکه چه څوک پکار ده
نو د دنیا ژوند او د آخرت ژوند دواړه په سمی اسانئی بیا دَ رحمٰن په معنی کښی ډیر
زیات رحم پروت دے دا دَ خدائے خاص صفت دے بنده هم چه پیدا شی نو په
ډیرو دنیوی مصیبتونو کښی ګیر شی هر وخت دَ ده زړه غواړی چه څوک دَ پاره څوک
مهربان پکار دے نو چه ډیر مهربان وی نو خدائے ورته اووے چه ځان لوئے رحمٰن
ښوك دے زه بے حده مهربان یم زه غواړم چه په انسان رحم او کرم راځه دَ دنیا غم
غم ژوندی او ډیره بنیان پر ښکیده دَ دهغوی په ظاهری طاقت قوت مال دولت
بادشاهئ او زور اښار مکوه ما ته راشه خو سم راشه ځان هم غلوه او ځما دَ
غلو لو کوشش هم مکوه بیا او ګوره ځما رحمانیت او خپله ژوندگی دَ رحمٰن نه چه دَ رحم امید
کوے نو ته هم په بل رحم کوه. په کمزوری په عاجز په نوکر په هر مناز رحم کوه دریم
لفظ رحیم دے په دے کښی دا غرض دے چه دَ دنیا ژوند دَ دنیا داګټه او عزت
یوائے دَ انسان دَ ژوند مطلب نه دے بلکه دَ دنیا دا ژوند دَ آخرت دَ ژوند حاصلو دَ
پاره یو ه کروند ه ده په حقیقت کښی دَ انسان او دَ نور مخلوق فرق په پس مرګ کیږی
ژوند پاند ے کیږی او پس مرګ کیږی ژوند ډیر دَ حقیقت نه ډك دے. په دنیا کښی
ډیر سړی خوش رنګ خوش مزاج او نیکان ښکاری خو حقیقت بل دے لیکن په پس مرګ کیږی
ژوند کښی داسے نشی کیدے دلته خو ژوند په غمو کښی غم ښکاری لیکن په پس مرګ کیږی
ژوند کښی به غم غم وی او ژوند به ژوند وی دغسے په دنیا کښی خو خدائے پاك خپل
رحمانیت په هر نیك بد باندے پوشان کوی. لیکن په پس مرګ کیږی ژوند کښی به رحیمیت
خاص دَ مومنانو دَ پاره وی. کوم انسان چه رحیم رحیم والئ او پیدا ے ځان کښی به ګری چه رحیم

خدائے به خپل د رحیمیت صفت په مؤمنانو باندے ښکاره کوی کافر و مشرك به د دینه محروم وی نو پدے سره به انسان د پس مرګیدے جوند د پاره خاص طیارے کوی. انسان به دا هم فکر کوی چه پدنیا کښ خو خیر هر سنګه چه ده وخت تیریدے شی دوستان، خپلوان، مال او عزت د سرې پکار یږی خو په پس مرګیدے ژوند کښې به دا هیڅ هم نه وی صرف د خدائے رحیمیت او د هغه انسان خپل عملونه به وی دا هغه اسلامی تصور دے چه په یو لفظ د رحیم کښ د ټولے دنیا د پاره د امن پیغام ورکوی

په آخر کښ به ده ده دے ایت یو بل غرض هم اولیکم چه په دنیا کښ د بل فرمان برداری او غلامی صرف په دو غرضو نو سره کیدے. یو د چانه ویره دے سبب جوړیږی او بل د چانه څه طمع سره ے په تابعداری مجبوروی - کله چه دا دواړه خبرے یو ځائے شی نو بیا په تابعداری کښ ورسره محبت هم پیدا شی. یوازے ویره نفرت پیدا کوی او یوازے طمع بے باکی پیدا کوی. خدائے مونږ ته د خپل عبادت او تابعداری حکم کونکے دے ددے وجه په بسم الله کښ اوخودے شوه چه زه یو طرف ته "الله" یم د جلال، د قوت او د جبروت خاوند یم او بل طرف ته بیده رحمٰن او رحیم یم انسان له پکار دی چه څما حکمونه او منی او پدے تابعدارئ کښ دے محبت ښکاره کړی او دا به هم یقین اوکړی چه پدے تابعدارئ کښ د خدائے خپل څه غرض نشته بلکه په دے کښ د انسان خپله فائده ده.

خلاصه دا ده چه په هر څیز کښ مؤثر حقیقی صرف یو خدائے دے دے خدائے دنیا پیدا کړیده په هغه کښ هیڅ عیب نشته هغه په ټول عالم رحم کونکے دے انسانان دے په هر کار کښ د ده نوم یادوی. خدائے د ټول مخلوق صرف د خپل رحم صفت په وجه

پیدا کړیدے او دغه وجه ده چه انسان دِ هم رحم زده کړی په یو بل دے رحم اوکړی
امیران دے په غریبانو، مالکان دے په محکومانو، بادشاهان دے په رعیت، عالمان
دے په امیانو دَ خپل حال او شان مناسب رحم اوکړی. پدے رحم کښی دے دے
دَ خدائے رضا نه کوری ذاتی فائده دے نه خیال کوی دَ خدائے دَ جلال او قهر نه دے
ویره کوی او دَ هغه دَ جمال او رحم نه دے امید لری او خدائے دِ دَ هر قسم عیبا کو
صفتونو نه پاك گنړی۔

## اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ۙ اَلرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ ۙ

هر قسم ثنا صفت چه دے الله لره دے چه دَ ټول جهان پالونکے دے ډیر مهربان۔ رحم کونکے دے

## مٰلِكِ یَوْمِ الدِّیْنِ ۙ

او دَ جزا دَ ورځ مالك دے

په دے آیتونو کښی الله پاك دَ بسم الله پوره مطلب ښکاره کړه پدے کښی خدائے
انسان ته هغه طریقه خئی چه په کومے باندے انسان هغه جبار او رحیم خدائے ته رسیدے
شی دا مطلب په دنیا کښی دَ همیش نه شته او دَ دے دَ پاره هر چا خپلے خپلے خیالی طریقے
جوړے کړیدی څوك لنګوټی واچوی دَ تالابونو دریابونو په غارو کښی ناست وی خدائے
ته ئے دِ بکت حاصلوی۔ څوك په بابو وهلو کښی دا مطلب ګوری څوك کوشه به کوشه
کچکول په لاس ګرځی سوالونه کوی او دِ بیته دَ تقرب لار وائی، دا ټولے طریقے دینی آدم
خپلے جوړے وے پدے کښی هغه خاص معقولیت نه وو پدے وجه خدائے پاك دَ پیغمبر
حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په ذریعه دَ وحی په تعلیم ښیخه او اسان معقول

په اسماني کامل مکمل کتاب قران کښې اوخوده او داسې ئې اووے چه اے د خدائے
نزدیکت لټونکو که آب حیات غواړئ نو داسې او وایئ چه الحمد لله او پهٔ دے پوهے
شئ چه دا کلمه د الله او د بنده په مینځ کښې تعلق پیدا کونکے مضبوط واسطه ده
په دے دخپل روح د زنګونو پردے لرې کړئ په دے هم پوهٔ شئ چه پتاسو به د
خدائے دیر رحمتونه هله نازلیږی چه تاسو دیر دیر هغه ته نزدے کیږی پخپل روح
کښې صفائي راولئ د نور په رڼا او د باران په لطافت کښې فرق نشته خو کڼه او شیشه
یوشان د نور نه فائده نه اخلی او شاړه ځمکه د ودان ځمکے هسے شینکی نه راټکوی انسان
د خدائے ثنا صفت پخپلو تولو اندامو نو سره ځکه کوی چه د الله ذات د ذاتی او
اختیاری کمالاتُ مالك دے د خدائے د پاره حمد یو داسے جامع لفظ دے چه د
انسان په ژبه راتله پکار دی د خدائے پوره صفت په شکر او مدح سره نه شی کیدے
انسان کله کله څه چه ډیر کلن او ره خطا کیږی دے کله د نُور عبادت شروع
کړی او خپل نظر مخکښې نه بیائي چه د دے نُورُ خالق څوك دے؟ څومره طاقت دے
د څومره کمال خاوند دے. کله یو بادشاه، یو دڼیس، یا یو نیك بنده د خپل ځان د
پاره آخری معبود جوړ کړی دے د دینه غافل وی چه د دے طاقت، مال او دولت
د بنیکئ او پارسائ اصلی مرکزی مقام کوم ځائے دے. د دے کوتاهئ غلطئ لم نظرئ
اصلاح په دے دوو کلموکښې اوشوه چه اے لنډ نظریه انسانه! د دنیا د هیڅ جوندی
یا مړ مخلوق داسے ثنا صفت عبادت او تابعداری مکوه چه دوی د خدائے سره برابرکړی
بلکه د حمد و ثنا او تابعدارۍ والایق یوازے "الله" دے الله د انسان آخری او غرضی مرکز

دے۔ انسان خپل نظر اوکړو کړه۔ خپل محبت او تعلق د الله سره پیدا کړه دا ځمکه او اسمان، عرش او کرسي که لوئے دِے نو وی به۔ ته به د دے نه مخکښ کورے ستا نظر به په هغه ذات وی چه هغه د دے ټولو نه لوئے دے خدائے غواړی چه ستا محبوبه شی خو ستا د نائب دے د پاره د خدائے دا خوښه ده چه ته د دِ ئې چا ته سجده اُوکړے ځکه چه ته انسان یے ستا هستی د دنیا ټول مخلوق نه لویه ده۔ نه او غیر انسان ته سجده کول نه او خپل عونده مُتازه انسان ته معبود وئیل ته او الله نه پیژندل، دا ستا د شان مناسب خبره نه ده۔ ته همیش دا سے وایه چه الحمد لله

رب العالمین :۔ په الحمد لله کښ حمد و ثنه د خدائے سره خاص بیان شو۔ اوس په رب العالمین کښ د دے دلیل بیانیږی۔ هغه دا چه ځونږ روحانی او جسمانی پیدائیش، پرورش او ترقی خاص د الله د طرف نه ده ځکه یواځے الله د حمد مستحق دے ځونږ د جسم د پاره ځمکه او اسمان او په دے کښ بے شماره نعمتونه الله پیدا کړے او د روح د پالنے د پاره پیغمبران او اسمانی کتابونه دا اولیګل۔ په یو وجه هغه ځونږ د عبادت او د حمد و ثنوحق لری۔ د "رب" معنے دا ده چه "یو شئے په تلاره تلاره د هغه د حالتونو او ضرورتونو موافق لوئے کړی تر دے حده چه کمال ته اورسی" یوا بے مرول یا مُناز ته روپئ ورکول سخاوت او احسان خو دے سیکن ربوبیت نه دے په ربوبیت کښ پرله پسے په هر حالت کښ د هغه مناسب انتظام کول ضروری دی۔ دا سے قوت بے د خدائے نه په بل چا کښ نشته ځکه رب العالمین یواځے خدائے دے په ربوبیت کښ محبت هم ضروری دے د دے څه قدرے محدود وجود د مور په پالنه کښ شته چه خپل بچے په څه مُده به مینه پالی او چه بل بچے یے پیدا شی نو محبت بل بچی ته او کرځی وایه دا الله چه بچپل، غیر محدود

او غیر مخصوص رنګو ښائسته سره د میګو په سورو کښې د کبانو په دریابونو کښې د مرغو په هواګانو کښې د ګلونو په باغونو کښې د هاتیانو او ځناورو په ځنګلونو کښې او د ستورو په اسمانونو کښې خپل خپل مناسب ترتیب کوي د خدائے د ترتیب انتظام کړ د لوئے هاتهي د پاره په باقاعدګئے سره دے نو هم دغه کمال او باقاعدګي به نه نظر راتلونکي چیچي کښې هم بیا موندے شي۔

انسان که خپل ځان خپل وړوکوالے ځوان والے او بوډا والي ته او ګوري۔ نو بے ساخته به داسے او وائي چه دا هر څه رب العالمین د نظام د لاندے دي۔ د دنیا ټول مخلوق په خاص مقدار او خاص حکمت سره پیدا شو یئ۔ که هوا ته ډیر ضرورت دے نو هوا په هر ځائے کښې بے قیمته موندے شي هیڅ پټ ګټ او هیڅ وخت د هوا نه خالي نه دے په دویمه درجه کښې اوبه دي په ځمکه کښې دننه خو که ځینې او دا دریابونه د اسمان په طرف کښې د اوبو کارخانے د اوبو د جمع سامان دے خو ډیر ځایونه تر خالي هم شته په دریمه درجه کښې خوراک دے چه په وچه او لونده کښې د خوراک ذخیرے موجود دي هر یو مخلوق ته د دینه د فائدے اخستو طریقے ښودلے شوي دي

وړوکے بچے سر ته په پیدا کیدو سره د خپل خوراک خزانه د مور په سینه کښې لټوي خپله لاره په خپله سره ښکاره کوي۔ تے چه پخولګي نو قلار شي او به چپلوس کیدو سره کوي دا د رب العالمین هدایت دے انساني طاقت او تعلیم بلکه ځوانی ډیر مغرور ره عقل د دینه عاجز دے که په انساني کوشش باندے وے نو بچے به خاورو شوي وو او مونږ به ورته د تي رودل نه وو ښولي

په "رب العلمین" سره خدائے پاک د انسان نه تپوس کوي چه که ته نېږئ قوله

څوله دنیا کښې پالنه وینې نو آیا پالونکے به ودله نه منئ؟ که کارسازی شته نو کار ساز به ودله نه وی؟ چه مهربانی کورے نو آیا مهربانی کونکے به نه وی؟ که حکمت شته نو حکیم به نه وی؟ نا داسے آبادی لیدلیده چه د هغے آبادی کونکے نه وی؟ د دے سوالاتو جوابونه هر څوك داوړکوی چه واقعی پالونکے، کارساز، مهربان او حکیم پکار دے دا صفتونه که لك لك په مخلوقاتو کښې شته او ته د دے خلقو د دے صفاتو تعریف کوے نو د الله په ذات کښې چه دا صفات بیحده موجود دی. د هغه حمد و ثنا او صفتونه هم بے شماره پکار دی۔ تا سو د قرآن شریف د دلیل طریقه اولیده څومره ساده او عام فهم ده چه که خدائے د ټولے دنیا کامل او پوره پسے پالونکے دے نو د الله کامل او پوره پسے حمد و ثنا او عبادت پکار دے۔

**الرحمٰن الرحیم**:۔ مونږ د خدائے خدائی په ربوبیت سره اوپیژندله او پوی شو چه هر کله یواځے الله هر یو شے د خپل حال موافق کمال ته رسوی نو یواځے دغه الله د حمد و ثنا او عبادت لائق دے خو دا ئے نه معلومه نه ده چه ولے خدائے ټوله دنیا پالی او کمال ته ئے رسوی په دے وجه چه الرحمٰن الرحیم کښې د ربوبیت وجه خودے شی چه خدائے که ربوبیت کوی نو دا یې یو وجه چه هغه رحمٰن او رحیم دے د رحمانیت په وجه د دنیا دا ټول نظام په خاص بنائښت او برابرئ سره چلیږی. د دنیا ټوله کارخانه داسے معلومیږی چه هر څیز په مختلفو کارونو او کارونو اخته دے د باران وریدل د میو او د روزی د پیدا کیدو سبب دے نوږ، سپوږمئ، شپه او ورځ هم هسے تلل راتلل او په یو تل نه کوی څکه او د هغے لارے، ولے او په هغے کښې او به، د قسما قسم باغونو د ټوکیدو و لوئیدو او میو دارکیدو سبب گرزی، په دریابو نو کښې کبان،

او ملغلرې، په سیندونو کې پاسه د کشتو گرزیده په غرونو کښ قسما قسم ځناور د هغوی پېۍ او ورځې، د وطني ساورو خائښت او سورلۍ ټول داسې معلومیږي چه ټولګ رحم کونکي ذات د ټولې دنیا عموماً او د انسان خصوصاً په غم غمجن دی۔ دا خبره که د ښار عالم ته معلومه دي نو د باندې باندې چي او په کور کښ ناسته ښځې هم پدې پوهه ده. که د یو لوئې محل خاوند دا وائي چه دا ټوله کارخانه ځما په خدمت کښ لګیا ده نو هم دغسې یو میږې د ځپلې سوړې نه دا آواز کولی شي چه دا هر څه رحم چه دی دا په ما باندې دی. او ګورئ دا نُور په مونږ او په میږې یو شان اثر نه کوي؟ په هوا سره او او یو ساره مونږ ته او هغه ته یو شان نه ده نه رسي؟ ولې نه رسي، ځکه خدای تعالی وائي چه وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا طَائِرٍ يَطِيرُ بِجَنَاحَيْهِ إِلَّا أُمَمٌ أَمْثَالُكُمْ د ځمکې ټول ځناور او الوتونکي مرغئ ستاسو غوندې جوند او حالت لري، په سمندر کښ موجونه، په دریابونو کښ چلې، په غرونو کښ د اور شغلې، په ژمي کښ واورې او ګلې، په ګرمو کښ ګرم ګرم بادونه او سیلئ ستا په خیال څه نه دي او تا ته د رحم نه خلاف معلومیږي. خو داسې نه ده دا هر کار د رحم د پاره دی که د سمندر موجونه نه وې نو په ملکونو به بارانونه چرته ووکه په آسمان کښ بجلئ او تندرونه نه وې نو د ملک د اوبو او سبزا به څه انتظام وو. که آتش فشان غرونه نه وې نو د ځمکې مخ به په زلزلو وران شوې وو دا هر قسم خرابې چه ته وینې دا د څه خاص آبادۍ د پاره دی د مکان په آبادۍ کښ څومره کتے او خښتې ماتې شي لرګي ارې ارې او تکړې تکړې شي هله تعمیر اوشي. هر څومره د کارغانو آواز ونه که د بلبلو چغار سره وینې دا په اصل

د زیرا و بم اوازونه دی۔ که د بلبل چغار زیرده نو د کارغه او نیپس قران قران ورله بم دے

براہل ذوق در فیض در نمے بندد
نوائے بلبل اگر نیست صوت زاغ شنو

---

په عاشقانو دروازه د فیض چه بنده نه کړے
که د بلبل چیدان نه دی د کارغه کړه اواز

دلته که د تعمیر سره خائشت دے د مخلوقیت سره موزونیت دے دا صفت پدایو جرد دے چه هغه الرحمٰن الرحیم دے پدے بنا نشته دنیاکښ داهم نه ماتیدونکے قانون دے چه په دے دنیاکښ باقاعده انړول کیږی خه والے او بهترې به پاتے کیږی فساد او بدرنگی به تباه کیږی دا قانون هم پدایو جه جوړ دے چه هغه الرحمٰن الرحیم دے سره زر په کښتو ئی کښ واچوه سره به پاتے شی او کوټ به اوسوزی۔ خو دا ضروری نه ده چه په دے فوراً عمل اوشی۔ هغه خدائے خلقوا و قومونو ته مهلت ورکوی۔ پدے کښ دا مطلب وی چه شاید فساد کونکے نیکی شروع کړی تا سو اوگورئ چه څوک جوند د دے دلیل دے څرنګ په تلاره تلاره موږ پیدا شو۔ بالخان شو ځوانان شو بڼا کان شو او بیا مړه شو۔ که دا د مهلت او د تلارئ قانون د رحمت او د مهربانئ په وجه پدنیاکښ نه وے نو د غلطو کمزورو، نقصانونو او فسادونو کولو سره به بربادی هلاکت هره روځ موجود وو۔ خو خدائے الرحمٰن الرحیم دے ځکه د مهلت قانون جوړ کړه۔

دا دنیا د دیرو تکلیفونو نه ډکه ده۔ سړی او ښځے، امیر او فقیر، عالم او جاهل

جو ړ او ناجوړه ټول پخپلو خپلو حالاتو کښې داسے ډوب دی چه د بل نه خبر نه دی که امیر د خپل محل په خوشحالئ کښې دے نو فقیر په خپلے لوګے او تندے کښې جوړ تیروی. سوداګر په خپلو لکونو کروړونو کښې آرام دے حساب نه لګوی. د غسے یو مزدور هم د خپلے روزانه مزدورئ پیسے شماری او د هغے حساب کوی یو حکیم د خپل علم په مسئلو کښې مشغول دے او یو دهقان په ګرمُ باد و نو کښې کوډ، للون کوی. ټول ویلے شی چه د کوم یو مشغولیت ډیر او د کوم یو کم دے.

مور په سوموره درد بچے پیدا کوی، تے ورکوی، لویوی او پړے تکلیف ډیره خوشاله ده او پړے پیسے لیونئ ده چه ځما بچے او شوے او زه پړے غم ګکړه شوے که داسے په هر کار کښې د هر چا دا دومره لیونے مشغولیت ته ویلے نو دا صرف پدیٔ دے چه خدائے تعالیٰ الرحمٰن الرحیم دے. په تکلیف کښې آرام په درد کښې خوږه والے په سختئ کښې مزه د رحمت په وجه ده.

که دا جسمانی دنیا داسے اباده ښکاری نو نه خه یقین کولے شے چه ځمونږ روحانی دنیا به د دے رحمتونو او فضلونو نه خالی وی د وحی نازلیدل، د آسمانی کتابونو راتلل د پیغمبرانو د لکونو په تعداد کښې راتلل د رحمت نظارے دی ځکه خدائے وائی وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِينَ که پدنیا خه پاتے کیږی او پدنیا که کیږی نو هم د غسے به حق غالب وی او باطل به کمزورے او مغلوب وی. د حق معنیٰ دا ده چه نه ورانید ونکے او د باطل معنیٰ دا ده چه نه پاتے کید ونکے، او څرنګ چه قانون مهلت په نورو څیزونو کښې شته د غسے به روحانیاتو کښې هم د غه قانون دے ځکه خدائے پاک خپل حبیب فرمائی قُلْ فَانْتَظِرُوْا إِنِّیْ مَعَکُمْ مِّنَ الْمُنْتَظِرِیْنَ لګ ټلارے او کړی په ټلاره ټلاره

به باطل رُک او حق ثابت شی. دَ خدائے رحمت یوداسے صفت دے چه څومره څومره کوڅ نودا به درته معلومیږی چه که قرآن کښې مخ په مخ کښې ذکر دے نو دَ رحمت دے الله تعالی بار بار دَ دے ذکر کوی او مونږ ته دا خبره ښکاره کوی چه تاسو هم په ځان کښې رحم پیدا کړئ۔ اے خدایه! مونږ اخلاق دَ رحمت په زیور ښائسته کړے آمین

**مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ** :- مَالِك، اختیارمند۔ يَوْم، روځ۔ الدِّيْن، بدله۔ که خوی او که بد وه۔ دَ قرآن شریف دَ نازلیدو په وخت کښې دَ خلقو دا خیال وو چه خه بدله حکم دَ خدائے پاک په خوشالئے او خفگان کښې ده۔ خو مونږ دَ خه عملونو او بد عملونو په دے کښې څه کار نشته۔ دوئ خدائے پاک دَ دنیوی بادشاه هسے گانړه دوی به وے چه لکه یو بادشاه چه خوشاله شی نو انعام ورکوی او که خفه شی نو سزا ورکوی دغسے دَ خدائے تعالی کار دے بیا یوجه هغوئ دَ خدائے پاک دَ رضاکیدو دَ پاره قسم قسم نذرونه، قربانئ او نور رسمونه جوړ کړی وو۔ دوئ به پخپلو بتانو باندے داشکرنے ځکه کینښو دے چه مونږ له خدائے پاک رضا کړی بیا غه وخت کښې عیسایانو دَ خدائے تعالی نه دَ قهر او دَ غضب هستی جوړه کړے وه دوئ وے چه دَ نبی آدم عمل دَ خدائے تعالی غصه نشی یخولے دَ دے دَ پاره هغوئ دا ومنله چه خدائے پاک عیسے خپل ځوئے کړو او بیائے دَ نبی آدم دَ گناهونو دَ معاف کولو دَ پاره په سُولے اوخیژو۔

قرآن شریف اووے چه انسان دَ دنیا په کارخانه کښې موږ دخیز دے ځرنګ چه دَ نور دے دنیا حال دے دغسے به انسان هم وی۔ بیا دنیا کښې دَ هر خیز حب احسا حالتونه او اثرونه دی پس ځرنګ چه خدائے جسمونه او دَ هغے اثرونه پیدا کړی دی

دغسې به څوک ښه او بد عملو نه وي او د هغې به اثر و نه وي. د ښه عمل نتیجه ثواب او د بد عمل نتیجه ئې عذاب ویلې شي. کورئې په اور کښې د سوزولو خاصه ده هر څوک چه په اور کښې لاس کیږدي نو لازمي خبره ده چه هغه به سوزي. دا سوزول د اور بدله ده داهر څرګنده شي کیده ے چه ته په اور کښې لاس کیږده ے او د اور د بدلې نه بچ شې اِلَّا مَاشَاءَ الله) پس دغسې داهر ګرنشے کیده ے چه ته دِ ګناه او کړے او د هغې د عذاب نه دے خلاص شے که نه د اور په سوزیدو، د او بو په یخ والی، د زهر په وجلو د پیو په طاقت، او د کو نینو په تبه دکولو یقین کوے نو ته په دے هم یقین او کړه چه ستا د ښه عملو نو خاصیت ثواب او د بد وعملو نو بدله عذاب دے نو چه غنم او کرے او هیڅ کله درسره دا فکر نه وي چه کیدے د دے نه به جوار پیدا شي او دا و لے چه پدینا چرے داسې شوی نه دی بلکه ستا د القین دے چه د ښه قسم غنمو تخم نه غنم پیدا کوی نا کاره غنم نه پیدا کیږي نو تا ته پدے کښې غرنګ شک دے چه ستا د ښه نیك عمل بدله به ثواب او د بد عمل به عذاب وی.

دغه وجه ده چه قران شریف د جزاء سزا د پاره "الدین" لفظ اختیار کړه ځکه چه "د عمل د بدلې" د پاره د دینه زیات مناسب بل لفظ نه وو. قران شریف که مونږ ته د نیکئ و بیا کوی او د بدئ نه مونږ منع کوی نو پدے کښې غرض دا دے چه بني ادم د غضب نه بچ شي او نجات بیا مومي پدے بیان کښې دا خبره خو دل دی چه که خدا ئے رب او رحیم دے نو هغه عادل هم دے. د کرفت او بدلے صفت هم لری. خو د اجزاء او سزا د قهر یا د غضب په وجه نه ده بلکه دا د انصاف او عدل، د خلقو د نیکو او بدو

عملونو نتیجہ دہ پہ دے کارخانہ دَ دنیاکښ کہ رحم اَو ربوبیت ضروری وو نو پہ دے کښ عدالت هم ضرور پکار وو. پہ ربوبیت سرہ سیزونہ کمال تہ رسی او پہ رحمت سرہ بلا فائدہ ورکوی او پہ عدالت سرہ پہ کښ بنا نُشت راځی او دَ نقصان او فساد نہ بچ کیږی عدل داسے یو صفت دے چہ پہ دے سرہ کہ پہ انسان کښ وی نو روغ جوړوی کہ پہ وَنو کښ وی نو بنا نُشتہ کلو نہ پیدا کوی. کہ پہ آبادو کښ وی نو تاج محل پیدا کوی کہ توازن، برابرے او عدل پہ دنیاکښ پاتے نہ شی نو دا کارخانہ دَ دنیا بہ تباہ او برباد شی. ظلم. طغیان. اسراف. تبذیر. فساد داټول دَ بے اعتدالئ مختلف نومُونہ دی.

دَ قومونو ترقی او تنزل پہ دے معلومیږی چہ دَ دوئ تصور دَ خدائے دَ ذات او صفاتو پہ بارہ کښ څرنګ دے نو پہ ټولو قومونو کښ آخری ترقی یافتہ عقیدہ هغہ دہ کومہ چہ قرآن دَ بنی آدم پہ مخکښ دَ خدائے دَ صفاتو پہ بارہ کښ بیان کړیدہ

قرآن شریف خدائے پاک دَ جسم نہ پاک بیانوی هغہ شریک نہ لری دَ قهر او دَ جلال پہ ځائے پہ هغہ کښ رحم او جمالی ډیر دے.

دَ قرآن شریف دَ نازلیدو پہ وخت کښ دا ښکنتی مذهبونہ وو او دَ هغوئ دَ خدائے پاک پہ بارہ کښ دا عقیدے وے.

پہ هندوستان کښ دَ گیتا دینا کومہ چہ دَ ن ورځے ځوړ صوبے نہ خدائے ډِ نہ کی رادوانہ دہ. داسے دہ چہ هغہ دَ دنیا هځیز نہ خدائے وائی ځکہ چہ پہ گیتاکښ بے دَ خدائے نہ بل وجود نشی منلے، نو دَ خدائے څہ خاص تعریف گیتا نہ کوی. دَ دے تصور او وینا پہ وجہ بُت پرستی شروع شوہ ځکہ چہ دَ بُت وجود دَ خدائے پاک وجود وو

ابوالکلام ازاد په ترجمان القرآن صفت۱۰۰ کښې لیکی چه دا ډیرې مطلب او د نه پوهې د خبره ده.

بل د بدھ مذهب تعلیم په هندوستان کښې موجود وو هغه وائی چه بنی ادم د کوم الله نه پیدا دے بیا به بیرته الله کښې واصل شی د بینه "نروان" وائی

مجوسیان وائی چه د خیر خدائے یزدان دے او د شر خدائے اهرمن دے. آوز او نُوز د یزدان لوبه کارنامه ده ځکه مجوسیانو آوز او نُوز ته سجدے شروع کړے

یهودیانو د خدائے تصور د جسمانیت او نه جسمانیت په مینځ مینځ کښې کاوه او د خدائے په صفات کښې قهر او غضب غالب منی.

عیسایانو په خدائے کښې د پلار هسے محبت پیدا کول غوښتل. کفاره. او مریم پرستی غوندے د دوئ عقیدے وے د دے ټولو عقیدو په مقابله کښې قران په کوم ترتیب سره چه د خدائے صفتونه بیان کړه چه اول پالنه بیا رحمت، او بیا عدالت دا داسے ترتیب دے چه بیرته هر سړے د خدائے د صفات په قدر پوهے شی بیا دنیا کښې د ټولو نه اول مونږ وینو چه پالنه موندے شی بیا مهربانی او رحم دے. په اخر کښې عدل. برابر نیا او موزونیت دے بیرته بیان سره د ټولو مذاهب تصورات منسوخ شو.

إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ○ اِهْدِنَا

خاص تا لره عبادت کوو مونږه او رخاص لتا نه مدت غواړو مونږه او خیه مونږ نه

# اَلصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ۝ صِرَاطَ الَّذِيْنَ

نيغه لار — لار د هغې كسانو

# اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ ۝

چه پېرزو نه كړې تا په هغوئ باندې

چه بنده په ټول زړه كښې د الله صفات او تجليات پېدا كړه او يوائې خدائې پاك د ده په نظر كښې كېناست نو دې خپل ځان د خدائې په حضور كښې ولاړ وينې او داسې وائي چه اې ځما په سترګو كښې نه راتلونكيه خدايه زه پتا قربان شم ځما معبود خو يوائې ته ئې زه بې لتا نه بل څوك د دې قابل نه وينم چه د هغه عبادت او كړم. او ځما امداد خو بې لتا نه بل څوك نشته. "عبادت" حد درجه عاجزئ ته وائي چه د چا په تعظيم او ادب كښې او كړې شي. عبادت په دوه قسمه دې يو په ظاهرى اندامونو سره دې لكه مونځ، روژه، حج شو او بل په مال سره دې لكه زكوٰة شو

په دنيا كښې خلقو ځان له دوه قسمه خدايان جوړ كړي وو او وس هم شته يو بړنى څيزونه لكه نور سپوږمئ، ستورى شو. او بل ښكته څيزونه لكه اور اوبه، هواء، غوا، غوايان، مارپېړے وهم كښې ځونږ د وطن هندوان كونتا ردي خدائې پاك د الحمد لله نه تر مالك يوم الدين پورې د انسان متازى خدايانو ثابته كړه او ټول د دنيا پېړے متازى كښې د انسان نه كه زيات نه دى نو كمه نه دې په دې وجه ټولې د دنيا له عموماً او انسان له خصوصاً دا پكار دى چه خپل حد درجه ادب عاجزى، بدنى او مالى عبادت خدائې پاك له او كړي. او د دنيا ټول دروغجن

بتان مات کړی او مدات حارف د خدائے نه او غواړی - دا د دروغجنو خدایانو منونکی په اصل کښې د دے خدایانو نه مدات غواړی او د دوی نه امید او نه لری عجیبه خبره ده چه یو ځلې خپل ځان نه شی ساتلے د هغه مرګ چونډ د بل په اختیار کښې وی هغه به د بل څه حاجت پوره کړی. جُومات خو د کافرانو بت پرستو نه یو طرف نه ګله ده چه دوی ولے مخلوق پرستی کوی لیکن بل طرف ته د مسلمانانو په کور کښې دا مرض موجود هم دے. شیعه تعزیو ته سجدے کوی او مونږ کښې ډیر تک قبرونو ته سجدے کوی د دوی نه حاجتونه غواړی په حقیقت کښې دا کارونه که په مسلمانانو کښې راغلی دی. نو دا حارف د هغه دانو په کار وندلی او ناسبت ولاړے راغلی دی خدائے دِ مونږ د دوی د ملګرتیا نه بچ کړی امین

اِیَّاکَ ، خاص تا لره ، نَعْبُدُ ، مونږ عبادت کوو پدے کښې دا غرض دے چه عبادت خو نور خلق هم د خدائے کوی لیکن د هغوی په عبادت کښې نور ، سپوږمۍ ، پیریان ملائکے بنی ادم د دنیا بادشاهان ، د مشرکانو بُت هم شامل وی او مسلمان عبادت خپل ذلیل والے او خاکساری حارف خدائے له کوی . نور مخلوق په عبادت کښې د خدائے سره نه شریکوی او ثومره ثومره چه د عبادت خصوصیت په مسلمان کښې راځی نو دومره دومره به دے یو خدائے منونکے جوړیګی . د خه مسلمان دینا "لله" کوځید ل ناسته او ولاړه د چا حکم منل او نه منل د چا سره محبت کول او دشمنی کول حارف د خدائے د حکم په وجه وی .

او دا عبادت یوائے هم نه کوی بلکه د ده نور ملګری وی ځان له ملګری پیدا کوی په شریک کمزوری ، خه او بدا ، او ډیر خه مسلمانان په جمع د خدائے په مخکښې په اتفاق

او دریږی ځان له امام جوړوی او په هغه پسے د هغه د حکم په موافق عبادت کوی. که د یوتن یا د دوو تنو عبادت منظوریږی چه د دے کمزورو مسلمانانو هم منظورشی. که په یوائے موبخ کښ باقاعده گی، او دریدل او کیناستل برابر نه وی نو د امام او د جماعت په وجه بدے کښ عمده گی راځی علاوه د دینه به هر څوک د یو بل نه خبریږی. د یو بل د امداد د پاره به صلاح کیږی۔

هم دغه رازو نه په اِیَّاكَ نَسْتَعِیْنُ کښ هم دی چه د خدائے نه نو یو کافهم مدت غواړی خو مسلمان بے د خدائے نه بل څوك مددگار نه گڼړی. مسلمان د دنیا مړه او ژوندی واړه او لوئے قول خدائے ته مُمتاز مني نو یو ممتاز به د بل ممتاز نه څه سوال او کړی مُسلمان اول خپل عبادت د خدائے په حضور کښ پیش کوی او بیا د خدائے نه په خصوصیت سره مدت غواړی او د اخبره ښکاره کوی چه څوک د عبادت حقدار دے هم د هغه نه مدت غوښتل بکار دی که بل څوك څوک معبود نه دے نو بل څوك څوك د امداد قابل هم نه دے عبادت او استعانت بالکل لازم ملزوم دی. څوك چه پیر بابا لو یه بابا را او رسیږے وائی هغوئ سخته غلطی کوی. د هغوئ په خیال کښ کوم ذات چه څوك د عبادت حقدار دے د هغه سره په امداد کښ نور خلق شریك دے یوائے کو یا خدائے څوك مدت العیاذ بالله نشی کولے. دا کلمه ویل سخت غلطی ده او بد دے ایت بانده الكِ نظر کول سره سری ته فوراً خپله غلطی معلومیږی. بد دے کښ د بُت پرستئ انسان پرستئ بیخ او ښکل د خدائے پاك غرض دے۔

بتوں سے تجھ کو امیدیں خدا سے نومیدی
مجھے بتا تو سہی اور کافری کیا ہے

پدے آیت کریمہ کښې دا فقهي مسئلے معلوم شوے. چه سجده کول او رکوع کول بے د خدائے نه بل چا ته حرام دي، د چا په نوم روجه نیول حرام دي. د خدائے نه علاوه د بل چا په نوم خیرات ورکول جائز نه دي، د چا په نوم حلاله کول، د غیر الله نه مدت غوښتل ناجائز دي چا ته قاضی الحاجات او دافع البلیات ویل جائز نه دي. د انبیاؤ او اولیاء او نیکانو سره محبت د هغوئی تعظیم کول د غیر الله عبادت نه ده ځکه چه دوئی هم د خدائے د دین د زده کولو یا په هغے د زیات عمل کولو په وجه لوئے ګڼلے شي. د طبیب نه دارو کول صرف پدے نیت پکار دي چه دا یو ظاهري سبب دے. کیدے شي چه اثر اوکړي او کیدے شي چه اثر او نکړي. اصلي مؤثر حقیقي خدائے پاک دے که څوک حکیم یا ډاکټر او د هغه دارو مؤثر حقیقي اوګڼړي نو دا هم حرام دي او که څوک یو ژوندے یا مړ سړے مؤثر حقیقي اوګڼړي نو دا هم ناجائز دي پدے معامله کښې د زیاتي اوکمي په مینځ کښې مسلمان له او سیدل پکار دي. د نیکانو او بزرګانو دِ قدر کوي خو د خدائے درجه دِ ورله نه ورکوي او هغه مدت چه د خدائے نه غوښته پکار دي هغه دے د خدائے پاك نه یواځے غواړي که د بزرګے او د نیك سړي عزت کول ښه دي نو د خدائے عزت او قدر به مونږ ډیر لوئے دے، د ټولے دنیا نیکان که یو ځائے شي نو د خدائے پاك د طاقت قوت یوه ذره به هم ښکاره نه کړي او چه او به وي نو تیمم نه څه ضرورت دے چه قادر خدائے مدت کار شته نو د بل چا نه ځان خوړے د ولتو نه او ارتو نه غوښتل څو مره نا پوهي او سادګي ده اے خدایه ! ځمونږ نا پوهه پو یه کړے او ځمونږ ټولو له پدے ایت باندے د عمل، د تبلیغ او د جهاد توفیق ورکړے امین.

اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِیۡمَ صِرَاطَ الَّذِیۡنَ

أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ۔ اے خدایه نه موږ ته نیغ لار اُخیې هغه نیغه لار

چه ستا د پېرزونې قابل خلق پرې تلي دي!

د هدایت د جوړیدو او کامل کیدو د پاره سلور مرتبې دي چه هغه خدائے

پاك دا سے بیانوي. الَّذِي خَلَقَ فَسَوَّىٰ وَالَّذِي قَدَّرَ فَهَدَىٰ خدائے هغه څیز پیدا

کړه بیائې هغه برابر کړه بیائې د هغه څیز د پاره اندازه مقرره کړه بیائې په هغه

د عمل لار پرانسته۔ د پیدایش او د اندامو نو د برابر والی خبره بانده هڅوك

پوهیږي۔ نو د تقدیر او د هدایت په باره کښې یو څو خبرے لیکم. تقدیر دا دے

چه مثلاً د مرغو جوړښت وزرے او بدان په دا سے اندازه جوړ دے چه د هغو د

او سیدو د پاره په هوا کښې الوتل، د میانې په او بو کښې گرزیدل دا تقدیر دے

او هدایت دا دے چه هر یو څیز ته دا سے پټ او ښکاره طاقتونه ورکړے شوي دي

چه په هغې سره د خپل ژوند لارے معلوموي او د هغوئې نه د ژوند د سامان په

حاصلولو کښې مدد اخلي۔

د هدایت مرتبې مختلف دي۔ په حیوانا تو کښې یو پټ خدائي طاقت دے

چه هغې ته په عربي کښې "وجدان" وائي په هغې سره یو وړوکے بچے دا معلوموي

چه د ده د مور په سینه بانده د ده د لوږے لرے کولو د پاره دوه چینې دي

د هغې چوچل د ده د لوږے لرے کولو سبب دے. د دېنه لږه زیاته مرتبه دویمه

ده چه هغه پنځه ښکاره طاقتونه دي۔ لیدل، اوریدل، سکل، مس کول، بویول

په دے څناور او بني آدم بارابر موجود څیز و نه معلوموي. دا دواړه هدایتونه په

ټولو ژوندو سرو کښې په لږ زیات کمي زیاتي سره موجود دي۔ او دریمه مرتبه چه هغې ته

هدایت وائی دا یوائے په بنیٰ آدمو کښ وی نور مخلوق ترې محروم دے ځکه چه هدایت
په عقل حاصلیږی عقل یوائے په انسان کښ شته نور مخلوق ترې محروم دے د خدائے
په دے انعام سره بنی آدم په مخلوقاتو کښ د یو ترقی یافته مخلوق درجه حاصل کړه
عقل په اصل کښ د وجدان او د حواسو د آخری ترقی نوم دے عقل نه یوائے د بنی
آدمو ضرورت وو ځکه دا انعام یوائے په دوی اوشه د دے دریوارو هدایتو نو د
پاره خاصے خاصے دائرے او اندازے دی چه د هغے نه باهر نه شی تلے وجدان په
وجود کښ دننه کار د پاره د طلب جوش پیدا کوی او د ژوند د باقی پاتے کیدو
په لاره باندے کار کوی خو د وجود نه باهر د کار قابل نه دے د وجود نه باهرلی
څیزونه معلومول د حواسو کار دے خو حواس هم باهر په خاص دائره کښ دننه
کار کولے شی سترګے لیدل کوی خو چه د لیدلو قول شرطونه پیا موندے شی مثلاً
رڼا لوږے والے په خاص اندازه کښ که دا شرائط موجود نه شو نو بیا به حواس هم
کار او نکړی د حواس د کار نه پس بیا داسے سوالات پیدا شی چه هغه د دغ محسوسو
څیزونو په باره کښ د دوئ د وجود وجه فائدے نقصانونه وغیره دی نو په دے
باره کښ سترګے او غوږونه وغیره د جواب نه عاجزه شی او دا ترینه او جوابونه
عقل ورکوی ځون وجدان که غلطی کوی نو حواس ورته هدایت کوی لکه بچے او ورپه چه
کیدای چه دا به څمالونه لرے کړی نو چه ورته هدایت اوکړی چه ستا دا کار
غلط دے دغسے چه حواس غلطی کوی لکه مرض په حالت کښ چه ځون چه کبین نه ترخ
وائی نو عقل ورته وائی چه دا خبره غلطه ده سترګے وائی چه دا نور خو د یو دوی

اُمرہ دے نو عقل ورتہ وائی چہ تہ پہ غلطئ یې، پہ دے تا سو پوهی شوئ چہ د وجدان غلطی پہ حواسُ معلومیږی او د حواسُ غلطی پہ عقل معلومیږی، اوس دا هم واورئ چہ د عقل نہ هم غلطی کیږی او د دہ د پارہ هم یو خلورم طاقت پکار دے چہ دہ تہ هدایت کوی د عقل کار تا سو اولیدہ چہ د سترګو پہ لیدو کښ بہ عقل امداد کوی۔ دغسے نور حواس چہ اوریدل، سکل وغیرہ او کړی نو پہ محسوساتو باندے د عقل د کار موقعہ پیدا کیږی۔ عقل پہ اسے څیزونو کښ هیڅ کار نشی کولے کوم چہ ښکارہ موجود نہ وی نو ګویا معلوم شوہ چہ د عقل د کار حد هم یوازے پہ موجودہ څیزونو کښ دے د غیبو څیزونو پہ بارہ کښ خو بہ عقل بیکار دے د دے غیبو خبرو د پارہ او د عقل د غلطئ د لرے کولو د پارہ خدائے پاک د وحی د هدایت احسان اوکړہ او دا احسان پہ عام بنی آدمُ اوشہ پہ دے هدایت کښی د هر چا د خیر خیال اوساتلے شہ دینہ پہ قرآن شریف کښ الهُدیٰ او الدین وائی او دینہ الاسلام وائی پہ دے هدایت کښ د هر انسان د تندے ماتیدو د پارہ خوږے اوبہ پرتے دی۔

بنی آدم پہ اول اول کښ ډیر پہ سادہ طریقہ سرہ اوسیدہ د تول مخلوق یو شان حبند وو میوے د دوی خوراک وو، غارونہ د دوئ کوټے وے پہ یوجہ نہ جنګ وو نہ خفګان، خو چہ د بنی آدم نسل ډیر شہ او د ژوند طریقہ زیاتہ شوے نو اختلافات، ظلم او فساد پیدا شہ او هر یو ډلہ د بلے ډلے دشمنہ شوہ پہ داسے حالاتو کښ ضروری وہ چہ د انسانی جنګونو ملے پہ اسے منصفانہ طریقہ سرہ اوشی چہ تول خلق پرے رضا وی د دغہ طریقہ نہ "خدائی وحی" وایي د دے وحی رادړو نکو نہ

رسولان والې دا سلسله په ډېرو رسولانو مشتمله ده چه په هغې کښې کامل او مکمل نبي ځونږ څوک نبي "محمد" صلی الله علیه وسلم وو د دې ټولو پېغمبرانو لار او سبق یو او بالکل یو وو او د خلقو په ښه طریقه سره ژوند تېرول د یو خدائے عبادت کول د نیک عملې ژوند تېرول د دې تعلیم مقصد وو په اندامونو کښې هیڅ کله زیاته ندے کړے ځکه هغه غواړي چه مونږ خپل سر بېتوب ټکړے ټکړے نه کړو. د خاندانونو ټکړے، د وطنونو اختلاف، د قومونو جهګړے، د رنګونو جدائی د ژبو په بل رنګ والی اختلاف کول د قرآن د تعلیم نه خلاف کول دي. د امیر او فقیر د کمزوري او د زوراوري جهګړے د اختلاف سبب جوړېږي په کورکښې نفرت پیدا کېږي د دے ټول اختلاف لرے کونکے او د دے خه خلق په یو دسترخوان راجمع کونکے لاره مذهب اسلام او صرف اسلام دے که ستاسو خدائے یو دے نو ستاسو مذهب هم یو دے که تاسو د هر خاندان نه یې که د هر وطن یې که د هر قوم یې که په هره مرتبه کښې یئ نو تسل دے به خدائے نه کړي دا آسماني تعلق به ستاسو د ځکه ټول اختلافونه لرے کړي ستاسو خفه زړونه به خوشاله کړي تاسو به معلومه شي چه ټوله دنیا ستاسو وطن دے او تاسو ټول د رب العالمین عیال یې

دا ځونږ مذهبي اختلافات یا په دې وجه دي چه د مذهب تابعدارانو په مذهب کښې پیدا کړېدي. او یا صرف ظاهري او فروعي قدرے اختلاف وي کنې نو ټول مذهبونه یو دي د مذهب جوړخت د دو څیزونو نه دے د مذهب روح چه هغې ته دین والې او د مذهب ظاهري شکل چه هغې ته شرع منهاج او نسک وائي په دین کښې اختلاف نه وي بلکه په طریقۂ عبادت کښې چه فروعات دي اختلاف شته

او په دے کښې څه حرج نشته. د مذهب مطلب نیک بختي ده چونکه د هر ملک جدا جدا حالات او ذهني طاقتونه دي پس په مختلفو ملکونو کښې د مختلفو حالاتو مناسب د دے روح د حاصلولو د پاره په مختلف رنګ کښې عبادات کیښودے شو او دا اختلاف داسے اختلاف دے لکه چه د دنیا د خلقو په معاشرت او طبیعتونو کښې دے د قبلے په بدلیدو یهودیان او عیسایان ډیر خفه شو نو خدائے پاک داسے بیان اوکړو چه بیت المقدس ته مونځ کول او کعبے ته مخ کول نو فروعي خبرے دي دا دومره ضروري خبرے نه دي اصلي مطلب نو خدائے پرستي ده دا مطلب د حق او د باطل معیار دے په فروعاتو باندِ انبار نه دے پکار، هم دغه قرآن شریف اشاره کوي چه لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَمِنْهَاجًا (۵ : ۴۸) مونږ د هر رسول د پاره یو خاص شریعت او لاره مقرر کړے ده د اسلام د راتلو په وخت کښې ټول د مذهبونو تابعداران په دے خیال یو شان مضبوط وو چه دین د دے ظاهري عباداتو نوم دے او په دے وجه هر یو تولګے د بل تولګي په ظاهري عباداتي اختلافي خبرو باندے د یو بل دشمنان وو اسلام ورته ښکاره کړه چه دا عبادات د مذهب د علی جوندیوه ظاهري نمونه ده اصلي دین او د دین مطلب صرف خدا پرستي او نیک جوند دے او دا مذهبي روح په ټولو الٰهي مذهبونو کښې پروت او موجود دے په دے دین کښې نه تبدیلي شوېده او نه اختلاف البته کوم خلق چه ځان نه او خپل مذهب ته حق والي او په دے مذهب کښې دا روح نه وي نو هغه دروغجن او د خدائے دشمن دے او مذهب باطل دے نو سره د دے په اسلام کښې داسے رواداري ده. چه مسلمان ته اجازت نشته چه د دے باطلو مذهبونو معبودانو ته بد رد او وېلے شي

لکہ وَلَا تَسُبُّوا الَّذِینَ الخ (۶ : ۱۰۸) او گورئ

د دین د یو والی په موجود کیدو کښې چه د اسلام په وخت کښې هم "دین حق" موجود وو. قرآن ته څه ضرورت پیدا شه چه د مذهبونو تا بعدارانو په دین کښې کم او زیاتی اختیار کړه او ضرورت پیدا شه چه اسلام ټولې دنیا ته هغه اصلی او حق دین سنکاره کړی او غلطۍ لاړې هم یوه یوه خلقو ته بیان کړی او خلق د ټولګی ټولګی والی نه منع کړی. د دین حق خلاصه حارف داوه

"چه د د نیا د ټولو اشیاؤ په شان د بنی آدم عملونه هم خاصیتونه او نتیجې لری د هغه عمل بدله خه او د بد بدله ده"

خو خلقو دا خبره ایره کړه او د دین حق په نسلونو، قومونو، او په قسم قسم رواجونو کښې کیر کړه د دې نتیجه دا شوه چه د چا اعتقاد او عمل ته کتل نشته بلکه دیته کتې شي چه دې په کوم ډله کښې دې او هغه په کوم ټولګی کښې دې. ګویا ټول صداقتونه او د آخرت نجات په یو ټولګی کښې په داخلیدو موقوف شه اعتقاد او عمل په تاخ کښې کیښودې شه او په دې وجه نفرت او تعصب پیدا شه. خدا پرستي او د دینداری ړنګه شوه.

قرآن شریف په دې سلسله کښې په درې خبرو خاص زور ورکړیدې

(۱) د بنی آدم خلاصې په اعتقاد او عمل پابند ے دے. د ډله والے هیڅ حقیقت نه لری.

(۲) د بنی آدمو د پاره دین یو دے کوم خلقو چه مختلف ټولګی جوړ کړیدي دا باطل دی

(۳) اصل دین د خدائے یو والے دے. د دینه خلاف هر څه اعتقادات او عملونه چه دی هغه اصلیت نه خلاف کول دي،

بیا دے ډله بازئ کښې د اسلام په وخت کښې یهودیان او عیسایان ورانده ورانده وو او هر یو نیکی بخپله ډله کښې گڼړله د یو سړي عمل او خدا پرستی دوئ هیڅ شے نه گڼړه. قرآن شریف دا ښکاره کړه چه صداقت په حقیقت کښې د هرې ډلے سره د ښي د هغے ریښتنی تعلیم په وجه شته خو عملاً هغه حقیقت دوئ ورک کړه، د دوئ دشمنئ دا سے حد ته رسیدلے وے چه هر یوے ډلے به د بلې ډلے عبادت خانے ته سپک کتل او هغه به یے د غلبے په وخت کښې نړولے دے کار ته خدائے پاک ظلم عظیم وائی. یهودی به یو ازے په یهودی رحم کول خه گڼړل او په عیسائی به ظلم کول خه گڼړلے شو دغه د عیسایانو حال وو، یهودیانو د یهودیانو نه سود اخستل ناروا گڼړل خو د عیسایانو نه سود اخستل جائز وو. د عربو د امیانو نه مال په هره طریقه اخستل جائز وو. دین دا سے حکمونه نه کوی چه په هغے کښې دا سے جدائی وی. ظلم ظلم دے. او انصاف انصاف دے بیا دے وخت کښې مشرکین عرب یو دریمه لویه ډله هم وه د دے دریوارو ډلو حضرت ابراهیمؑ قابل عزت هستی منله. بیا یو چه قرآن شریف د دوئ نه تپوس کوی چه ابراهیم په کومه ډله کښې وو چه تاسو ډله بازی د صداقت سبب گڼړئ د دے جواب خو صفا وو چه د هغه د وخت کښې دا یوه ډله نه وه. نو د هغه نیک والے که د د ډله بازئ نه وو او هغه صرف په خدائے پرستئ او نیک عملئ بانده وو. نو ستاسو د دے ډلو څه مطلب دے

قرآن شریف د نوے ډلے د پیدا کولو د پاره نه وو راغلے بلکه د دے ډله بازو نه نجات ورکول او په یو صراط مستقیم چه د خدائے هسے یوه لار ده جمع کول د قرآن کریم مطلب وو او دا لار څه نوے لار نه وه بلکه د مخکښې نه وه خو ډله بازو پرے تاریکے راوستی

وې کړ د نوَر دنیا په هر چا دنا غوررزوی. او پدې قومی، جغرافی، نسلی حد بندئ کښې نشې بندیدې ے نودین حق" هم په ځان کښې د بنی آدم د پاره جدائی نه لری. تاسو د خدائې په نوم جنګو نه مه کوئ تاسو ټول د خدائې یو شان مخلوق یئ - قرآن شریف د نازلیدو په وخت کښې د هغې زمانې د ریشتنو خلقو د ایمان او د عمل په پوره فراخدلئ سره اقرار کړیدے. هغوئ د هر مذهب خلق چه وو. قرآن والئ چه دوئ د مذهب حقیقی روح نه ے ضائع کړے نو د اسے خلق تپ غه وخت کښې کم وو. د قرآن شریف د اسلام نه مطلب صرف دغه دے چه د ټولو رسولانو مشترک تعلیم چه هغه یو دے دغه اسلام دے د بنی آدمو جوړے د لې حقیقت نه لری او دغه وجه ده چه د یو بل د وینو تږی خلق په یو صف کښې اودریده - عیسائی چه د یهودی دشمن وو، مجوسی د غیر مجوسی په لیدو خفه وو. ع یو بل چا نزد و سرې نه وے - صابیانو رشتیا یواځې په ځان کښې کښېنول. دا خلق د دعوت قرآنی په وجه په اسلام کښې داخل شو او دشمنئ په دوستئ بدلې شوې.

قرآن شریف د ځان سره د اختلاف هیڅ امکان نه وو پرېښودے ټول رسولان منل او هر چا ته ئې دا ویل چه ته خپل حقیقی دین حق او منه د هیڅ نوے لارے طرف ته تلنه نه وه خو بیا هم خلق د اسلام نه مخالف وو. داولې؟ قریش مکه بت پرست وو اسلام د دے نه منع کول. خو یهودیان ترولې مخالف وو چه هغوئ خو بت پرست نه وو. په اصل کښې د اسلام نه د خلاف وجه دا وه چه اسلام د نلانځې هم لې خلق ولې نه دروغجن کوی او یواځې خوښ دے لې نه خه ولې نه والئ د ټولو د لوتصدیق کول د دوی خوخ نه وو. یې یو وجه دوئ د اسلام مخلاف کوو. په قرآن کښې که د موسیٰ علیه

السلام تشریف دے نو د عیسیٰ او د مریم علیہما السلام تشریف په کښې هم شته. قرآن کریم د نجات ذریعه نیک عمل ګڼړی او عیسایان وائی چه کفاره کافی ده په قرآن کریم کښې د حضرت ابراهیمؑ او د حضرت اسمٰعیلؑ تشریف دے نو ځکه قریش مکه خوشاله وو خو د دوی دا خوخه نه وه چه د یهودیانو او د عیسایانو د پیغمبرانو ولے قرآن تصدیق کوی خلاصه دا ده چه (۱) قرآن د مذهبی ډلو نه مخالف وو او دین یو خوده (۲) نیکی په عمل موقوف ده نسل، قوم، ډله او رسمونه هیڅ شے نه دے. معبود یواځے یو خدائے دے شرك او بت پرستی ناروا ده داخبرے د مختلفو ډلو خاوندانو ته منل ګران وو ځکه دا سلام نه مخالف وو

## صِراطِ مُستقیم

پس دے جملہ کښې بندګان د دنیا د ډلو نه او د هغوئ د پروجنبو نه تنګ شوے دی د خدائے په جناب کښې د حد درجه غلامئ نه پس د زاری جونه د پاره سوال کوی چه اے خدایه مونږ ته نیغه لار اوخیه او د هغه خلقو لار راته اوخیه چه تا پرے انعام کړے دے د ګمراهانو او غضب کړے شوو خلقو د لارو نه مو بچ کړه

نیغه لار چه یو مقام ته خاص رسیږی هغه همیشه یوه وی او ګږے لارے ډیرے وی. د نیغ لار خاوندان پیغمبرانؑ صدیقان، شهیدان او صالحان دی پیغمبرانؑ د خدائے شاګردان د خدائے د حکمونو رسونکی په خپله زمانه کښې چونږ شوے خلق دے او صدیقانؓ هغه ریښتنے خلق دے چه د هغوئ وجود د ریښتیاؤ په قالب کښې داسے جوړ وی چه بے د ریښتیا ویلو او کولو نه په بل خه د هغوئ اندامونه نه چلیږی. صالحان چه د نیک عملئ په لارے کښې مضبوط وی او د بدئ د لارے نه بیزارۃ

ګرځي. شهیدان چه پخپله وینا او کار سره د حق اعلان کوي

پدے کښ د خاص قسم نسل او قوم څه خصوصیت نشته. نه د څه خاص مذهب نیکان مراد دي بلکه د دنیا قول نبیانؑ وغیره که د هر ملک او قوم دي. دوئ د قرآن په نزد انعام یافته انسانان دي او د دوئ لاره بیخه ده د خدائ پاك د حقیقي دین د بیان د پاره د صراط مستقیم نه بل موزون لفظ نه وو د دے لارے نه علاوه د بنده یانو خپله جوړه کړه لاره چه وي هغه کږه لاره ده بیخه لاره پټان کښ سادګي لري څه ګران والے پیچیدګي او معما په کښ نه وي. د نه پوهېدو عقیدے، نا قابل برداشت عملونه پکښ نه ښکاري. ساده دین حق دا دے او صرف دا دے چه ایمان او عمل صالح خدا پرستي او نیك عملي کول" هر څوك د هر نسل د هر وطن خلق چه دا صفات په ځان کښ پیدا کړي په صراط مستقیم به روان شي. صراط مستقیم د هر قسم جغرافیائي نقشو او د جماعت د حد بندو نه پاك دے. د صراط مستقیم تفسیر قرآن شریف په هغه خلقو سره او کړو چه د نیکئ په لار کښ د خلقو په مخکښ موجود وو. د هغوئ کامیاب جوند خلقو ته ښکاره وو. هغوی رښتیا رښتیا او صداقت صداقت وو لوئ لوئ ستونه د هغوئ په مخکښ کاکه وو. په دے تعریف سره قرآن شریف د صراط مستقیم مطلب داسے ښکاره کړه چه د دینه بله څه طریقه د صراط مستقیم په معنی پوهې ونشوه کیدئ

# غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّآلِّيْنَ

نه لار د هغه کسانو چه غضب شو یدے په هغوی باندے او نه لار د ګمراهانو

دَ هر یو شیز په بیان کښ مثبت او منفی حالتونه بیانول ضروری وی د صراط مستقیم
مثبت پهلو خو دَ انعام یافته خلقو لار ده لیکن منفی ارخ ئې دا دے چه دَ مغضوب علیهم
خلقو دَ لارے نه مونږ بچ کړے. مغضوب هغه خلق دے چه لار بیامونده. دَ خدائے دَ انعام
نه حصه اغستونکے شو خو بیا ئې دَ نعمت لار پرېښوده او بد بختی ئې واغستله. او ضالین
هغه خلق دے چه دَ صراط مستقیم پته ورته او نه لګی او په ګګو لارو کښ ګرځی ټکرے وهی
ګویا مغضوب پس دَ پوهې او نه دَ انکار نتیجه ده او ضالین دَ ناپوهې نتیجه ده مغضوب
ډیر بد بخت دی چه لار بیا مومی او بیا دَ هغې نه مخ اوګرځوی او دا دویم په درجه کښ
کم دی او دا حقیقت دے چه د دنیا دَ ټولو ګمراهو دوه عنه نمونه هم دغه کیدے شو
چه یو منکر او بل جاهل دے

په قرآن شریف کښ چه دَ نا فرمانو قومونو ذکر دے هغه یا پس دَ انعام او اکرام
نه منکران شوی دی یا ئې دَ جهالت په وجه او و په نیغه لار تلل ضروری نه دی ګڼلی
په احادیثو کښ دَ مغضوب علیهم په تفسیر کښ دَ یهودیانو مثال خودلے شویدے او
دَ ضالین په تفسیر کښ دَ عیسایانو مثال بیان دے تاسو دَ دے دوارو قومونو تاریخ
اوګورئ نو پوهې به شئ چه واقعی خبره ده چه یهودیان انعام یافته تعلیم یافته
منکران وو او عیسایان وحشیان او جاهلان وو. په دے تفسیر کښ دَ مغضوب او ضالین
خصوصیت په دے دوو ډلو پابند ے نه بیانیږی. بلکه دا منجمله دَ هغې ډلو نه
یو مثالی بیان دے.

دا ضلالت کله په دے راځی چه دَ جسم لذتونه په روحانی عبادتونو پاندے
مخکښ کړے شی. کله دَ مال او دَ مرتبے په محبت او دَ رسمونو په تابعداری. چه بد و

صحبتونو او د نفس په ازادی گمراهی راځی او چه گمراهی راشی نو د نیکئ نه نفرت پیداشی لکه نن ورځ مونږ وینو چه شپه او ورځ بهنګ افیم . شراب . رنډی بازی د دې پرو ظاهری شریفانو د ژوند مشغله ده . هجراکان ، بروالکان کنجل او بد ردو بیل د دوئ د مجلس ښول دے . د شپے تر دوو بجو وېښ او بیا د سحر تر لس بجے خوب . بیا د خز وهسے منګړے په سوکښ وهل بهتن بیب کښتر نے شی . مرز بازی کمترے ساتل ، بازونه تازیان او کوته سپی ساتل د مالدارو د څخ شے دے په شپه او روځ کښ نه د خدائے نوم اخلی نه د ورته مرګ یاد وی نه د دنیا نه خبر وی نه انصاف او د ملک وطن په تالږکیدو پوهیږی . که ستاسو باور نه کیږی نو څوږ امیران سخه یوه شپه دوه اوکړئ د دوئ د ملک د ښه او باهر حال اوګورئ نو درته به معلومه شی چه په هندوستان افغانستان کښ نور څومره د وطن شریک څه کوی او څومره نوابان او امیران په څه کښ اخته دی د دے فضولیاتو په وجه د تیمور بادشاهی لاړه د لکهنو او د مرشد آباد په ریاستونو باندے جهاړو اوګرځیده دا باقی ریاستونه دے نه نصیحت نه اخلی د تو پوحالت دا دے چه زنګ وهلے توپے بیناخ دارے توپچے ، بے مطلب توړے ، د فوجیانو بوه سپلئے شته او نه بله څپے تبل دے وردی نه لری قواعد نشته ، افسران د جنګ د تعلیم نه خبر نه دی . افسران ټوک دی اکثر د هغے عیاشو خلقو خامن دی . وزیران ټوک دی هم د غسے عیاشان دوئ خپل رئیس د عیش په ذائکو کښ ژنکوی . د خزانے حالت تباه دے په رعیت کښ یے نه دینی مدرسے شته نه څه فن شته نه تصنیف وتالیف شته نه د علوم جدیده و ته پادره باهر طلباء لیګل شته نه چرته کارخانه شته او که شته نو اختیار د بل دے دا حالت ممکن ده چه په بعض ریاستونو او نوابو کښ تړل نه وی خو سرنګ چه یو مسلمان له

پکار دو چه په صراط مستقیم او سبیل د مسلمان کار دے د صراط مستقیم په ځائے د مغضوب علیهم او ضالین نظاره په دے مقامات کښې د بد قسمتۍ نه خکاری او دغه وجه ده چه څوک د وطن شریک خلق په بره روان دی. څوک د دے ضلالت نه فائده اخلی او موږ خپل نوکران چاکران جوړ وی. خدائے پاك دے موږ د یو عام غریب مسلمان نه واخله تر یو مسلمان بادشاه پورے په صراط مستقیم باندے روان کړی او د کافرانو طوق دے څوک د غاړے نه او باسی په مغضوب علیهم او ضالین کښې دے خدائے موږ راګیر نه کړی او په مستقبل قریب کښې چه یو تمدنی او تعذیبی جنګ دے او د ارتقا په اصولو به هغه قوم ژوندے پاتے کیږی چه صالح وی په عنوی کښې د ژوند اسباب دی پیدے مسئله دے خدائے موږ پو یه کړی د دے خطرے نه د بچ کیدو د پاره د وطن شریك خلق په روپو، په تبلیغ، په کتابونو، په ایجنټانو خپل صلاحیت او قابلیت د ملک د اختیارمندۍ د پاره بیا نوی او څوک د ناپوهۍ او کنجوسی بے کاری او بے تنظیمۍ نه دا فائده اخلی چه څوک تهذیب، تمدن، مذهب او معاشرت په څمکه کښې نخ کړی. څوک هنګامی شور د اخبریدل کنړی. څوک تنظیم ورته د اوم تاره جوړ کچه تار سنکاری. اے خدایه څوک رئیسان، نوابان، او علماء په را تلونکی تاریک مستقبل پو یه کړے

## اٰمین

اے خدایه قبوله کړے دعا څوک زه

دالحمد لله د ختم کیدو نه پس اٰمین ویل مسنون دی. په مسلم کښې د ابو موسٰی اشعري رض نه روایت دے چه حضرت فرمائی چه هر کله امام ولا الضآلین او وائی نو مقتدیان دِ اٰمین وائی. دا لفظ بالاتفاق د قرآن شریف جزء نه دے خو څرنګه د

عامو دعاگانو نہ پس آمین ویلٰشی دغسے دَ دے الحمد دَ دعا نہ پس آمین ویلٰ هم سنت دی دَ آمین دغہ تدارے حقیقت دے خوپہ دے باندے دومرہ لوئے بحثونہ جوڑ شویدی چہ دَ آمین پہ جهر اواخفا باندے باقاعدہ ډلے جوڑے شویدی پہ آمین لفظ دومرہ کینہ او حسد وَنہ کول سرہ دَ دے چہ کہ دَ اخفاء دلائل شتہ نو دَ جهر ثبوت هم شتہ داخو نہ ډیرہ ناپوهی دہ دَ دے نہ علماء لہ پرهیز پکار دے علمی بحث داحادیثو بحقیق دَ تحقیق تر حدہ پورے خہ دے خو لدے نہ یقینی حرام حسد پیدا کیدل خو نہ دَ دنیوی او اخروی نقصان سبب دے

## دَ سُورَۂ فاتِحَہ خلاصہ تفسیر

پہ هر مسلمان کښ دَ دے سورۃ پہ لوستلو سرہ داحالات پیدا کیدل پکار دی چہ اول پخپلہ ژبہ دَ خدائے ثنا وائی خو دَ کوم خدائے دَ هغہ خدائے چہ یواځے دَ نسلونو قومونو او مذهبی یا سیاسی ډلو خدائے نہ دے بلکہ هغہ رب العالمین دے۔ دَ دے غوڅ پیتہ او منکارہ کارخانہ عالم پالونکے دے دَ خدائے دَ رحم او عدالت صفت باربار پہ مونځونو کښ وائی او بیا یوجہ دَ فرمان برداری او غلامئ سریواځے خدائے تہ ټکوی او یواځے دَ خدائے پاک نہ پہ هر مشکل کښ مدت غواړی بیا دے دور لفظونو سرہ دونیا دَ ټولو قومونو نہ بے پرواهی ښکارہ کوی دہ ثابتہ کړہ چہ زہ دَ هغہ مخلوق نہ ویرہ نہ کوم او دَ هغے کس نہ بہ سوال نہ کوم۔ بیا دَ خدائے نہ دَ نیغے لارے دَ تللو توفیق غواړی۔ خو دَ چا خاص نسل نیغہ لار نہ بلکہ دَ ټولو رښتینو لار او دَ ګمراهانو دلار نہ پناہ غواړی۔ دَ عالمګیرے نیکی طلب او دَ عالمګیرے بدئ نہ پناہ دَ انسان خو دَ نیک نسان

مطلب دے چې د حالاتُ او حٰد باتو کښې پر ورت انسان به څرنګ مزید ارجوند تیروي. د دغه په جوندا کښې به دده خبرے ضرور وي. دده په خدا پرستئ کښې به د خدائے عالمګیر رحمت او جمال خدا پرستي وي او د دهٔ انسانیت به یو عالمګیرا انسانیت وي دا اعتقادات د قران د دعوت اصلي روح دے په سورهٔ فاتحه کښې د قران شریف ټوله خاکه داسے موجوده ده لکهٔ په یو تخم کښې چه ټوله ونه سره د ګلونو، پاڼو او ساګو پرته وي نو موږ نه خکاري تا سو دے مضامینو ته کورئ او د قران شریف تفصیلات مطالعه کوئ نو د دے خبرے صداقت به بچپله در ته خکاري -

## سورهٔ بقره

دا سورة شریف بغیر د اخري درے آیتونو نه په مدینه منوره کښې اول اول نازل شوي دے چې کښې دوه سوه اواوه اتیا ۲۸۷ آیتونه دي او سلویښت رکوع دي. دا سورت د قران شریف په ټولو سورتو نو کښې لوئے دے چې کښې ډیر شرعي حکمونه دي چې کښې د غوا د حلالے واقعه ډیره عجیبه او په ډیرو مطلبونو مشتمله ده او دغه وجه ده چه د دے سورت نوم بقره کیښودے شو دے سورت تعلق د سورت فاتحې سره دا دے چه په فاتحه کښې د هدایت متعلق ټول ذکر داسے شوي دے چه په څخ مریض زړونه شفا موي او چه شفا د زړه او شي نو روحاني جوند حاصلیږي او د همیش کیږي جوند پیدا شي دغه وجه ده چه د فاتحے نه روستو سورهٔ بقره ذکر شه چې کښې د هدایت او د روحاني جوند مفصل ذکر دے. سورهٔ بقره چه لوے نو په ټول کښې به تاسو د دے متعلق ذکر کورئ ؛

# شانِ نزول

هر کله چه په مکه او خوا وُ شاؤ کښې د دین اسلام رڼا خوره شوه نو د مکے نه د بت پرستو په زور زیاتۓ سره او د تبلیغ د زیات خورولو په غرض حضرتؐ او صحابو رضؓ مدینے ته تشریف یوړه په مدینه کښې او د دے په اطرافو کښې د ډیرے مودے نه کتابیان اوسیده په دغه وخت کښې د عیسایانو او یهودیانو تعصبات ضدونو او تړپکنو او وهمی خیالاتو د دین حقه لره رڼا هم مړه کړے وه چه ډیرے باندے نکیدم د اسلام نور راوخوت او د روحانی ژوند خبرے د دوی په غوږونو کښې پریوتے، ډیرے سره یو ځوندیداره نومسلمانان شو لیکن اکثر خلق چه د رسمونو او ضدونو پابند وو. په زړه کښې د اسلام په صداقت پوهیده لیکن د اسلام د مقابلے د پاره طیار شو۔ دا کتابیان د عربو په مینځ کښې ډیرا دخیار او پوهې ونځی کسان لے شو او دغه وجه وه چه د دے کتابیانو په اسلام اعتراضونه خلقو به ډیر خیال سره اوریده. د دے کتابیانو انکار د جاهلانو عربو د پاره یوه لویه بهانه او مدت او کوزیده۔ د مدینے په سردارانو کښې عبد الله بن ابیٔ چه د کینے او د مال او مرتبے په اور کښې سوزیده خو مصلحتًا په مسلمانانو کښې داخل وو او په پټه د مسلمانانو سخت دشمن وو۔ د دے منافقت کتابیانو او عربو جاهلانو ته ډیره مضبوطیا ور کړه۔ د دے ډیر یوالے ردولو د اعتراضونو اصلاح او د دوئ شکونو او شبهے په ډیرے نرمے طریقے او حکمت سره بیانول ضروری وو۔ ډیر یو وجه چه حضرت صلے الله علیه وسلم مدینے ته راغے نو اول اول دا سورت نازل شو۔ دا د ټول سورت شریف اجمالی شان نزول دے د بعض آیتونو د پاره خاص خاص خبرے هم د نزول سبب گرځیدلے دی۔ چه هغه به موقعه په موقعه بیانیږی خو دا مجمل سبب تاسو څېپیال کښې ساتئ چه د سورت

مطالب کښې ورته اسا ننتیا وی۔

| آیاتها ۲۸۶ | سورة البقرة مدنية | رکوعاتها ۴۰ |
|---|---|---|

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

شروع دہ۔ د الله په نوم چه ډیر رحم کونکے او مهربان دے

الٓمّٓ ۚ ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَيۡبَ ۛۚ فِيۡهِ ۛۚ هُدًى لِّلۡمُتَّقِيۡنَۙ

الم۔ دا هغه کتاب دے۔ چه په دے کښې هیڅ شك نشته۔ د پرهیزګارانو د پاره هدایت دے

د قرآن شریف د اکثرو سورتونو په اول کښې د الٓمٓ غوندے حروف راغلی دی. د دے په باره کښې دا قدرے خبره اتفاقی دہ چه دا هغه حروف دی چه لدینه کلام جوړیږی د عربو کلام او دا قرآن شریف هم د دے قسم حروفو نه جوړ دے خو دا د قرآن معجزه دہ او قرآن د خدائے د طرف نه د را تلو دلیل دے چه قرآن شریف په یو سورت جوړولو هم د عربو قول عالمان قادر نه دی۔ دے حروفو ته مقطعات وائی په دے کښې نورے عالمانه خبرے ډیرے دی خو خو د پاره دا قدرے کافی دہ۔ چه "خدائے پاك پوهیږی په معنی د دے باندے"۔

د هر مذهب خوبی د هغه مذهب په کتاب کښې وی کوم مذهب چه د فائدہ مند او خه اخلاق جوړونکی کتاب مالك وی هغه مذهب خلق خوښوی او نوځو نه په کښې داخلیږی. په یو وجه په دے سورت شریف کښې د قرآن شریف په باره کښې دا دعوی دہ چه دا ډیر د یقین نه ډك کتاب دے که یا د آسمانی کتابونو مضمونونه د عقل په ذریعه عقلمند معلوموے شی. د قرآن شریف خبرے عقلمندانو ته دعوت ورکوی چه راشئ

مااو کھوری او بیا جواب را کری چہ زہ صداقت لرونکے یم او کہ نہ یم۔ پہ سوو نو عیسایانو سرہ دا اسلام دشمنئ نہ پریے قائل دی چہ د قرآن شریف تعلیم عقل سلیم منی۔ پہ قرآن شریف کښی وهمی او خیالی خبرے نشتہ۔ ثومرہ عام او د خاموش فکر دعوت دے۔ د عقل پہ معیار کہ نننی یو کتاب ہم او کتے شی نو د قرآن شریف پہ صداقت سرے خبر پوی شی پہ ویدونو کښی د اوم، ابر، ستورو د عبادت تعلیم دے پریے باندے چہ عقلمند فکر اوکری نو او بہ وائی چہ انسان او دا سے مخلوق تہ عبادت کول د بنی آدم کښان نہ خلاف دے پہ ویدکښی د آلۂ تناسل عبادت شتہ او د غوا عبادت شتہ۔ چہ پریے پورے اخیار هندوان نن بخپلہ ہم خاندی او دغہ وجہ دہ چہ هندوان د خپل مذهب نہ تختی او لا مذهب کیږی او د هندوانو سرہ او سیدونکی مسلمانان پہ اسلام ہم دا گمان کوی چہ گینے دا مذهب اسلام بہ ہم دغسے وی ځکہ دوئ هم د مذهب اسلام نہ پہ تیختہ دی دوی لہ پکار دی چہ د قرآن شریف مطالعہ اوکری۔ پہ قرآن شریف کښی دغہ خرافات نشتہ د کوم نہ چہ هندوان تختی۔ پہ تورات انجیل کښی هم د تثلیث (درے خدایانو) د مسیح د خدائی، د بنی آدم د معافی د پارہ د عیسیٰ پہ سوئی ختل موجود دی چہ پریے باندے عقلمند سرے نہ پوهیږی۔ او دغہ وجہ دہ چہ پہ لکونو عیسایان د فرانس، جرمن او انګلینډ بے دین کیږی او باقاعدہ اعلانونہ کوی چہ ځون دے د دے تورات نہ توبہ وی او ځون دے انجیل نہ سلام وی۔ د دوئ پہ تابعداری کښی هندوستانیان هم ځائے پہ ځائے نارے وهی۔ غالبؔ۔ چہ مذهب را نہ مکوئ۔ هندوستانی مسلمانان! او پښتونو ورورہ! دا نکی پہ آواز پسے مزہ۔ کہ قرآن شریف او کورے او پتہ لکول

اُغواړې نو معلوم به کړې چه په قرآن، تورات او انجیل کښې د زمکے آسمان فرق دے په تورات کښې خو د لوط د خپلو لونړو سره د زنا ذکر دے (العیاذ باللہ) او دا ذکر دے چه خدا ئے پاک آدم ؑ پیدا کړ نو بیا پرې ستو مانه شه۔ د دے خبر و نه یورپ تختی او خپل مذهبی کتابو نه نه منی۔ تا په قرآن شریف کښې کوم داسے شے اولیده چه نه د قرآن شریف نه تنلے شوے۔ راشه! اوګوره او فکر پرې اوکړه په هر څه کښې د یورپ تابعداری مکوه۔ قرآن شریف په ځان کښې یو مقناطیسی ډرا سنګلو طاقت لری۔ دے به پتا سو کښې نیک چلنی پیدا کړی۔ تا سو نه ګورے چه په درولیشت کاله کښې قرآن شریف د دنیا په مخ باندے څومره باغونه پیدا کړه۔ څرنګ وحشیانِ د سرتیوب په دائره کښې او درول۔ د غلا، د راهزنۍ، د خونریزۍ، د کورنۍ لوټې او نا پوهۍ قرآن څرنګ بیخ اوخکه بد اخلاق خوش اخلاق شو ملکه د خوش اخلاقۍ چینے شوے۔ دغه د هُدًى لِّلْمُتَّقِينَ عملی تفسیر وو۔ تورات او انجیل آسمانی کتابو نه وو۔ بخپله زمانه کښې چه د کومے اصلاح د پاره راغلی وُو په هغے کښې دوی خاکرو د کار کړے وو۔ لیکن چرته د قرآن شریف اثرات او چرته د دغے محدود و مخصوصو کتابو نو اثر، د دے د پاره موسوی تاریخ او عیسوی زمانه او بیا محمدی اسلامی عهد اوګوره او اندازه اولګو چه قرآن شریف په ځان کښې څومره مرغوبیت او جاذبیت لری۔ د حضرت موسیٰ ؑ او د حضرت عیسیٰ ؑ هم تابعداران وو خو د حضرت محمد رسول اللہ صلے اللہ علیه وسلم تابعداران، د هغوئ فدائیت او جان نثاری د اسلامی تاریخ د کتو سره تعلق لری بلکه داچه د تورات او انجیل هغه جمع اهتمام اُنشه کوم چه د قرآن شریف شوے وو۔

پس دے درے آیتو نو کښې د قرآن شریف په باره کښې د لفظو نو پوریے و نکوته اول

دعوت ورکړے شه چه اے شاعرانو د فصاحت مدعيانو که قرآن سره د مقابلے طاقت لرئ نو ميدان ته راشئ که د دينه عاجزه يئ نو راځئ او د قرآن شريف په معانيو باندے غور اوکړئ چه پښے ستاسو ته ده ماتيږي که نه او بيا هغه د متقيان زمانے ته اوګورئ کوم چه قرآن شريف پيدا کړی وو. څرنګه د خدائے ويره ده. څرنګ پښين اوند هيا قربانيدل وو دا لفظي معنوی او عملي ثبوت د قرآن شريف د صداقت د پاره کد سړے کوندے ړوند او کوڼ نه وی کافی دے او د دے دريوارو دليلونو په کتو به سړے بے اختياره دا خبره اومنی چه

"دا قرآن شريف بے شکه د خدائے کتاب دے پښے کتاب سره
خدا ترسی پيدا کيږی"

د دے کتاب نه مطلب د هغه چا د غيے اقرار کول دی خو چه په چا کښ د قبوليت ماده وی چا چه د بد وصحبتونو په وجه خپل د قبوليت طاقتونه فنا کړيدی نو هغوئ د قرآن نه نفع او قرآن ور ته بو سيلا ښکاری. ځکه خدائے دا سے اووے چه هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ په دے کښ د قرآن قصور نشته بلکه ړوند چه ړوند دے نو ګويا د نور رنړا د دۀ د پاره نه ده. بلکه د بينا د پاره ده.



چه په لوح محفوظ ښکلے ليونے وی
په تعليم د معلم به اخيار نشی
شمشير نيک ز آهن بد چوں کند کسے
ناکس به تربيت نه شود اے حکيم کس

تقوی یو ډیر لوئے جامع لفظ دے د دے ډیرے مرتبے دی څه لوئے او څه ورے دی خو تا سو دومره پو یئ شئ چه حبه او زړه لاس او خپه د خدائے تعالیٰ په فرمان برداری کښې تکول دا د تقوی اصول دی.

خاتی وائی چه غرق شو تباه شو. چه تپوس تړاوکړے چه هلکه ولے خیر دے نو وائي سړه یه څونږ وطن وو څونږ سره . . . . ووغل د باهر نه راغے توله رانه تالا کړه. زه اوږے تږے پاتے شوم - دا خبره ډیره صحیح ده خو د دے نه سوا لا ډیرے بده نه دی چه باراني غل څما نه یواځې مال دولت نه دے اغستے بلکه په مونږ کښې دے غل دا سے زهر خواره کړه او دا سے زهر جن مشران راله جوړکړه چه هغوئ د یورپیانو په شان د دین اسلام نه تنګ دی. عبادت پکښې نشته. بلکه اوس اوس نو مونږ دے درجے ته اورسید وچه پیدے پورے توقع کوو. که تا سره د کیدے د تنور غم دے نو څه ده غم دِ یں نه دے خو چه تنور ډک کړے نو بیا به پرِ څه کوے؟ او دا اوس چه سحر ما بنام لامو ے نو اوس شپه او ورځ څه کوے؟ چه ګنے د صبا نه څه بے خبره شم. مال جائداد او دولت خو دِ غل پکار وو هغه یوړه دین مذهب او قران چه ثو مره د هغه نه خلاص دے تا پرِ ثو مره عمل اوکړه او که نه پیدے باقی قران عمل نه کوے او پد اسے حالت کښې پرِ عمل نه کوے چه نه ډیر غریب یے غلام یے لاچاره یے. نو که خدائے درله بادشاهی او عزت درکړه نو بیا خو به ته په پوزه پرے نه پریږدے د دے جائداد د دے قرآنی حکومت به غم عجبن شئ چه دا در نه کوم غل یوړه؟ دا به څرنګ قابو کوے؟ ستا په سیاست کښې او د یورپ په سیاست کښې فرق دے. یورپ بے مذهبه سیاست غواړي او نه سیاست د مذهب اشاعت

د پارہ غوارہ۔ کنې سم روغ جوړ یوړلې شه چه د مسلمان او د اسلام د دنه مطالبه پاتې نشی، نه به په هر حالت کښې که غلام یې او که بادشاه یې، که امیر یې او که گدا یې۔ متقي جوړ یکې خدائے پاك د مونږ د عربي نبي صلے الله علیه وسلم په طفیل په روحاني تیرے کښې د هغې همیشه تور مخنې نه محفوظ او ساتي آمین۔

اَلَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا

هغه متقیان چه په غیبو ایمان راوړي او مونځ برابر کوي او کوم مال چه

رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝

مونږ دوی له ورکړې دے د خدای په لار کښې ئے لګوي۔

د تقوی دوه ټکرے دی یو په خه خبرو باندے عمل کول۔ دویم د بدو خبرو نه پرهیز کول۔ د اول بیا دوه قسمه دی یو اعلیٰ دویم ادنیٰ اعلیٰ د حقو خبرو تصدیق دے چه د زړه سره تعلق لري۔ دیته ایمان وائی دا قسم د زړه هسے د ظاهری اندامونو په عملونو فضیلت لري۔ ادنی د اندامونو نیکو عملونو ته وائی چه هغه یو بدنی دی چه په دے کښې ډیر اهم مونځ دے او دویم مالی دی لکه زکوٰة شه د دے دواړو قسمونو ذکر په برنوا ایتونو کښې او شه چه يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ په دے سره یقین صحیح کول غرض دے او چه روح په دے باندے پاك شی نو د قوت عمل اعلیٰ جزء په یقیمون الصلوٰة سره او مالی عبادت په مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ سره بیان شه چه یقین او ایمان مضبوط کوی او په دے حالت کښې سړے مونځ کوی نو په دے سره د انسان د بدی طاقتونه فنا کیږی۔ دا مونځ صفت دے چه سړے د بے حیائی د کارونو نه منع کوی۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔

۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔ ۔

په بنی آدم کښې ملکي او بهیمي قوتونه هر وخت په جنګ دي چه کوم یو زور آور شي انډنور د هغه تابع شي ؛

ایمان د شریعت په هغه خبر و یقین ته وائي چه د هغه صحیح والے په یقیني طور سره ثابت وي لکه په قرآن شریف یقین کول چه دا د خدائے کتاب دے د خدائے پاك په ذات او صفاتو، په ملائکو، آسماني کتابونو، په پیغمبرانو، د مرګ نه پس په حساب وکتاب او په جزاء سزا یقین کول نیك عملونه د دے یقین اثر دے۔ په ژبه اقرار کول هم شرط دے او د ایمان د کمال د پاره اعمال صالحه ضروري دي. د چا چه د زړه تصدیق وي او په ژبه اقرار هم کوي مګر عملونه یې خراب دي داسے سړي ته مؤمن فاسق وائي خارجیان، معتزله او شیعه دوته کافر یا د ایمان نه خارج وائي۔ دوی وائي چه دا څه ایمان دے چه نیك عمل نه کوي او چه په زړه کښې تصدیق نه لري. خو ظاهري اقرار کوي نو دے کافر ته منافق وائي۔

غائب څیز و ته بعض داسے دي چه نه په حواسو لیدے شي نه څوك عقل پرے پوهیږي لکه عِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَیْبِ لَا یَعْلَمُهَا اِلَّا هُوَؕ د خدائے سره د غیبو کنجے دي په داسے خبرو به زړه خالص د خدائے د حکم په وجه تصدیق کوي. دویم هغه دے چه عقلي دلیلونه په هغے ګواهي ورکوي. لکه د خدائے ذات او صفات، جزاء او سزا شو. پس پوره تابعداري هله حاصلیږي چه سړے د پیغمبرانو په وینا په هغه څیز و نو هم ایمان راوړي کوم چه د هغه په مشاهده کښې نه راځي. یوائځے د سترګو په لیدلو شو څیز و نو اوبه لاس سره چه مس شو څیزونو، یا په ژبه سره د معلوم شو څیزونو په باره کښې ایمان راوړل

نو هیڅ کمال نه دے واڼی چه کوم خلق د پیغمبرؑ په ژوند کښې په پیغمبر ایمان راوړی نو د اددرجې د تعریف خبره نه ده ایمان هغه قابل تعریف دے چه په پیغمبرؑ په غیب ایمان راوړی. حضرت صلی الله علیه وسلم د خپل ژوند په وخت کښې ایمان راوړونکو ته "صحابه" او دروستنو ته خپل ورونړه ویلي دی.

اقامت د مونځ دا دے چه د مانځه ټول ارکان قیام، رکوع، سجده د یره په عاجزئ زړه په حضور سره اوشی. مانځګی او د هر قسم حکمی او حقیقی پلیتئ نه پاک وی په تکبیر تحریمه سره د دنیا نه علحده شی او د خدای پاک سره په ثنا صفت شروع شی چه په ولاړے الحمد او یو سورة اووائی نو بیا د یره شوق ته راټیټ شی او په دے حالت کښې دے سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ درے ځله کم از کم اووائی. بیا دے په قلاره سره اودریږی او رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ په ولاړے اووائی او د آخری عاجزئ او د نفس د غرور د ماتولو د پاره دے سجدے ته لاړشی او سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى دِ درے ځله اووائی او د دے مکملِ عاجزئ او د دے ټولو عبادت په شکر یه کښې دے دویمه سجده هم اوکوی دا د مونځ قیام دے. د دے نه زیات د کاملینو مونځ دے چه په سجده کښې په پاړو نو پراته وی جاری او د عاشق غوندے اسویلي کوی تا دګی دا د مسلمان مونځ تا سوا ولیدل اوس

د عیسایانو او د هندوانو چه نن ورسره څومره د کسانو خلقو مینه محبت پیدا شوی دی عبادت اوګورئ. هندوان او مجوسیان نو د نور، سپینډ ونو، او بتانو عبادت کوی او عیسایان پلیت وجودی کرجه ته لاړشی باجه غږوی. څه سندرے وائی دغه د دوی عبادت وی. په درمسالونو، کوردوارو، او کرجو کښې د عبادت

سرہ باجا او سرنگی وھل چہ د نفس د خوشالئ څیز و نہ دی تا سو روژہ نہ وینئ او س
تا سو پخپلہ د اسلامی عبادت او د غیر اسلامی عبادت پہ مینځ کښې فرق او ګورئ
چہ څومرہ دے     ببین تفاوت راہ از کجاست تا بکجا
پہ یؤمنون، ینفقون، یقیمون، درے وارہ جملو کښې چہ فعلونہ دی د دے خبرے
خیال دے چہ پہ یو ځل تصدیق، مونځ، نفقے سرہ بہ سړے متقی نشی کیدے بلکہ
ځرنګ چہ د بار بار کولو د پارہ شریعت مطالبہ کوی د غسے بہ دا عملونہ بار بار
کیږی او د دے عمل خاوند ھر څوک چہ وی د ھر وطن چہ وی دے بہ متقی وی
او چہ دا صفات پہ کښې نہ وی نو د ھر ځائے چہ وی، ھر څومرہ دولت مند یا
سپین پوستے چہ وی دے بہ متقی نہ وی
پہ دے آیتونو کښې عجیبہ ترتیب پروت دے زړہ د وجود بادشاہ دے
اول د زړہ صفائی پہ تصدیق او ایمان پکار دہ چہ دا روشی نو بیا دے دے
قابل شی چہ د خدائے پہ جناب کښې حاضر شی او مونځ او کړی پہ مونځ کښې
روحہ ھم موجود دہ بلکہ قول اللہ اموونہ خپلہ فرمان برداری پہ رنګا رنګ طریقہ
سرہ ښکارہ کوی۔ د مانځہ د پارہ مالی قربانی ھم کیږی چہ پاکے جامے، پاک
مکان او د غسے نور انتظام کول ضروری دی۔ دا مونځ ھم ګران شے دے چہ پہ شپہ
او ورځ کښې پنځہ ځل ادا کیږی۔ زکوٰۃ او خیرات نو کلہ کلہ ورکیدے شی
پہ مونځ کښې ھر یو بالغ او عاقل مسلمان سړے او ښځہ شریک دی او د یو مونځ د نہ
کولو سزا دہ کرورہ اعاذنا اللہ کالہ عذاب د دوزخ ځکہ پہ حدیثو کښې راغی بیا
پس لدینہ د زکوٰۃ او خیرات ذکر او شہ پہ خیرات کښې د مِن ذکر او شہ چہ بعض

د مال خپل نه د خدائے په لارے کښې اولګوه. داسے خیراتو نه اوخرسو نه د نوم ناموس د پاره یې ودونو کوبیا نوکښې د خیرات په نوم مکوه چه بیا په سوال اخته شے یا دسود په جال کښې ګیر شے. نن د مسلمانانو د جائدادونو نور خلق مالکان جوړ شو چه ذوئ مسرفان شو نوضرور به د دوئ سته او د کافرجغ وی. خو داهم نه ده چه سل روپے خو نسے، بے شماره مونځونه کوے خو یې د مرګي ورکولو دے زړه ورانیږی. داسے بخیلی نه ده پکار چه مور او پلار خپل او خپلوان ستا مدت نه متاز وی او نه ورسره مدت کوے شے خو د بخیلۍ په وجه ستا د لاسه د دوئ سره مدت نشی کیدے. داصفت چه په قوم کښې پاتے شی نو هغه قوم زکسینږی دا قسم خلق کرڅان له ډیر مارهٔ شی نو هغې قابل تعریف خبره نه ده د دے بخیلا نو نخبل د ده قوم د بل غلام کړی او دے ورسره هم خوار وزار شی. اسلام د اسراف نه هم منع اوکړه خو د بخیلۍ نه هم خه بدی ویلے ده په مِمَّا رَزَقْنٰهُمْ کښې یوائے مال نه دے بلکه عالمان یا نور نیکان چه په جبه په لاسو خپو او قلم سره خلقو ته جسمانی او روحانی خوراك رسوی دا هم نفقه ده

وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ

او هغه متقیان داسے خلق دی چه ایمان راوړی په هغې کتاب چه تاته نازل شویدے او په هغې کتابونو چه ستا نه مخکښې نازل شویدی

وَبِالْاٰخِرَةِ هُمْ يُوْقِنُوْنَ۝

او په روځ د اٰخرت هم یقین کوی

ایمان رشتیا کنز لو نه وائی عمل کول بل شے دے. پس په مخکښو ټولو کتابونو باندے

چہ پہ پیغمبرانو نازل شوی دی ایمان راوړل فرض دی او دا دے ایمان شرط دے

یعنی داسے یقین کوی۔ چہ خدائے پاک داکتابونہ څرنګہ چہ نازل کړی وو

هغه صحیح وو او خود غرضو خلقو چہ په هغے کښی څه تبدیلی اوکړه هغه غلط خبره ده پاتے

شه عمل نو هغه خو به یواځے په قرآن شریف کیږی ځکه نی کتابونه خو قابل عمل پاتے نشو

او نه د هغوی اصلی حالت پاتے شوی دے کہ څه نمونه دی نو دا د شاګردانو وینا کانے

دی. د قرآن شریف د نازلیدو په وخت کښی تورات، انجیل، زبور موجود وو خو

هغه یو داسے رنګ شوی وو چہ د عمل قابل نه وو پاتے شوے. پولوس چہ هغه

عیسایان لوے رسول او د موسیٰ نه هم لوئے والی هغه په اول باب د هغه خطونو کښی لیکی چه

کوم هغه ګلتیانو ته لیکی چہ

"خلقو انجیل ادل بدل کړه. اے خلقو تاسو جعلی انجیلونو ته وے مائیل

یئی اصلی انجیل بے د څه واسطے نه ما ته ملاؤ شوی دے بے ځما د دے نه

کہ تاسو نه څوک انجیل اوروی نو په هغه دِ لعنت وی"

دا موجوده څلور انجیلونه چہ د عیسایانو نسخه دی دا د پولوس نه دی نو دا هم مردود شو

د "تورات" د مطالعه نه هم دا معلومیږی چہ تورات سوو نو کالونه پس د حضرت

موسیٰؑ نه د تاریخ په طور جمع شوی دے او په زبور کښی هم داسے اختلاف دے کله کله

حضرت صلے اللہ علیہ وسلم د یهود یانو یا د عیسایانو د پوپولو د پاره داکتابونه راغوختی

دی نو د هغے وجه دا وه چہ په دے کتابونو کښی ډیر خه مضامین هم شته - خو کفاره او

درے خدایان منل او عیسےٰؑ نه خدائے ویل داسے مسئلے دی چہ د آسمانی کتاب د شان

مناسب نه دی او نه دا یو عقلمند انسان منلے شی او دغه وجه ده چہ تورات، انجیل د دے

قسم مسئلو تر دیں پہ قرآن شریف کښې ځائے پہ ځائے ښوریں شوے ؛

پہ آخرت د ایمان راوړلو مطلب دادے چہ څوک د دنیا عملونہ بے اثرہ نہ ګڼی یقینی دہ چہ د دے د پارہ یو داسے وښت شتہ چہ پہ هغې کښې بہ مونږ تہ د اعملونہ پہ اصلی رنګ کښې ښکاری د نیکو عملونو شکل بہ ښہ ښائسته وی او د بدو بہ بد وی۔ خو عملونہ بہ څوک د خوشالئ سبب اوګرځی او بد بہ څوک د خفګان وجہ اوګرځی۔ نو یقینے روح د آخرت باندے چہ د دے نہ پس بلہ ورځ د عمل د پارہ نشته ایمان راوړل د متقیانو کار دے

اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝

دا متقیان د خدای د طرف نہ پہ نیغہ لار باندے دی او دوئ خلاصے مونده ونکی دی۔

د متقیانو د صفتونو او د نیک بختئ د بیان نہ پس د دے نتیجہ بیانیږی چہ کوم هدایت پہ تابعدارئ د قرآن حاصل شی نو بیا بہ د دوارو جهانو ګټہ اوشی حضرت ابن عباس رض والئ چہ د هدایت نہ مطلب نورا واستقامت دے او د فلاح نہ مطلب د خیرا و خوبی حصول او د بدئ نہ خلاصے دے دا یقینی خبرہ دہ چہ پہ دنیا کښې د رښتیا او د مضبوطے ارادے خاوندان پہ آخرت کښې ګټہ مونده شی ګټہ د هدایت نتیجہ دہ مطلب نہ هغہ څوك رسی چہ هغہ تہ پہ نیغہ لار روان شی ؛

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ

بیشکہ کوم خلق چہ کافران دی برابرہ دہ دوئ تہ کہ تہ او دیروے دوئ او کہ او نہ

# نُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ۝

ویرې دوی ایمان نه راوړي

چاچه د ایمان په ځائے لاړ د انکار اختیار کړه او د ریښتیاؤ د اوریدو او قبلو لو طاقت فنا کړه د هغوئ د پاره د هدایت ټولے چغے بیکاره دی که نه دوئ د حق د انکار د نیغو نه او ویروے او که او ئے نه ویره وے هغوی هیڅ کله منونکی نه دی ؛

د شقی د پاره د قرآن شریف هدایت او د کافر د بینه محروم والے د دوئ د قبولیت او نه قبولیت په وجه دی چه چاکښې څه لګ هم صلاحیت وی نو هغه به د قرآن شریف نه فائده واخلی لکه روند د خپلِ بینائیی نه لرلو په وجه د نور د رڼا نه محروم وی او په سترګو جوړ تر فائده اخلی ؛

دا دنیا او د دنیا ټول مخلوق د خدائے د وجود سوری دی. دا شیزونه پیدے دنیا کښې فورًا نه جوړیږی بلکه دوئ په یو بل عالم کښې چه هغ ته عالمِ مثال وائی موجود دی او د هغ نه دے عالم اجسام ته رازی بیا غه عالم مثال کښې چه په چاکښې د قبولیت ماده وه او په هغه د خدائے د رحم رڼا او غوزیده نو هغه بیا دے دنیا کښې کافر او منافق او کرځیده. قرآن شریف د غه جور حقیقت نشی بیا لولے. د عالم مثال بحث دلته نشی څه کیدے او کوم خلق چه په عالم مثال کښې څه وو خو بیا دنیا کښې په څه عارضی حالاتو سره د تیرے په کنده سروی هغوئ ته قرآن شریف په تلاره هدایت کوی او هغوئ د اسلام په دائره کښې داخلیږی.

د دے خدا داد هدایت په لحاظ سره او د ازلی صلاحیت په مطابق د دنیا خلق دا قسمونه دی اول ته شقی وائی. دے شقی ته په قرآن شریف کښې "اَصحٰبُ الشمال" او

اصحٰب المشئمۃ یعنی بد بجنت او د کینڑلاس په ذریعه عمل نامه اعشتونکے والئ۔ په دے شقیانو کښی یو هغه دی چه بالکل د خدائے پاک د انوارو د قبولیت ماده په کښی نه وی۔ د څلور واړه طرف نه په خروتیر وکښی کیږی۔ شکل د انسان دی خو حقیقت کښی څناور وی۔ دیته قرآن شریف کافروائی۔ د دوئ په باره کښی د مهرلګیدو د پړدے د راتلو او په دوئ د قرآن د نه اثر کولو ذکر دے۔ دا هغه ازلی کافری۔ لکه ابوجهل وغیره شو۔ دوی د دوزخ د باره جوړ دی د دوئ زړونو، سترګو او غوږونو کښی د پوهے لیدو او اوریدو طاقت نه دے پاتے شوے دویم هغه خلق دے چه ئے قدرے طاقت د تبلیدو پکښ وی چه کله کله بریخیکی لیکن د مال دولت۔ شکونو خپلو رسمونو رواجونو شهوت پرستئ او بد مستئ په وجه دی دا الله طاقت مړ کړه دیته په قرآن شریف کښی منافق وائ۔ د شقی په مقابله کښی سعید دے د سعید هم دوه قسمه دی یو ډیر مقربین دی مقربین هم یو مجتبٰی دی او بل منیبین دی د غه پیغمبران او صدیقین دی او بل هغه خلق دے چه نیکی او بدی دواړه لری دیته اهل عفوه وائی بل معذبین دی چه د ګناه په برابر به عذاب مومی او بیا د دوئ روح پاک شی او جنت ته به لاړ شی۔ دا الفاظ خو عربی دی چه په قرآن شریف کښی مختلف راتلونکی دی په خپله خپله موقع به د دے بیان کیږی۔ تاسو دا لفظونه یاد ساتئ

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ وَعَلٰى سَمْعِهِمْ وَعَلٰى اَبْصَارِهِمْ

مهر والے دے خدائے په زړونو د دوی باندے او په غوږونو د دوی باندے او په سترګو د دوئ

غِشَاوَةٌ وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ

پردے دی او د دوئ د پاره لوئے عذاب دے

د دے داسے مثال دے لکہ څوک امیر چا غریب لہ سل روپئ تنخواہ مقرر کړی او دا غریب
چه سل روپي داخلی نو کومی نه یے او غورزوی - امیر دے د دینه ډیر کناره منع کوي
لیکن هغه د دینه نه منع کیږی او نه ترا میده پاتے شی چه دے به منع شی - امیر د ده
تنخواه بنده کړه او دا فقیر بے دے هم خفه نشه د خپل طرف نه یے څه عذر امیر ته او نکړه
امیر خپل دے رعیت ته اووے چه فلانکی فقیر حماد تنخواه قدر نه کاوو - ما یې تنخواه
بنده کړه او س خلق به چا ته ملامتیا کوی. لازمی خبره ده چه قابل د ملامت فقیر
دے نه امیر، دغسے کافر خپل خدای طاقتونه د خدای او د هغه ریښتنو احکام په خلاف
کښ استعمال کړه کوم چه پیغمبرانو راوړه او بار بار داسے او کړه - انجام کار په دوئ
باندے د دوئ د ناهلئ په وجه د ختم الله الخ حکم اوشه

دا مقام د ډیر تفصیل نه دے ځکه چه د پښتو تفسیر لوستونکی به شاید چه د
معتزله او نورو کافرانه خیالاتو نه پاک وی خو بیا هم یو مثال ئے خبره ښکاره کوم
یو بیا اکول د کار دی او بل کول د کار دی په دے دواړو کښ فرق دے او دا دے
مثال داسے دے لکه زید چه مالک دے خپل غلام عمر ته او وائي چه دا یوه کټه ده - زه
خو دا او چتولے شم لیکن نه ئے نه شے اوچتولے خو ځما دا قانون دے چه د امتحان د پاره
که چا د دے کټے د اوچتولو اراده او کړه نو ځما به زور به ئے اوچته کړی خو دا اراده
دے څوک نه کوی کنی نو مجرم به وی او س چه عمر د دے کټے د اوچتولو اراده او کړی
او بیا د زید په هغه قانون دا کټه اوچته شی نو بے دے وخت کښ عمر ضرور مجرم دے
چه سره د علم ده د کټے د اوچتولو اراده او کړه په زید هیس الزام نشته هم دغسے
خدائے بنده له اراده او قوت د کسب ورکړه مګر بے دے باندے ایجاد نشی کولے د خدائے

دا معمول دے چہ بندہ دیو کار ارادہ اوکړی نو الله د هغہ نہ فعل پیدا کړی نو اوس د دے فعل اعتراض په بنده دے په الله نه دے د بدو په کولو کښې سبب بنده دے او د دے وجہ دادہ چہ د دے نہ دیر نقصانونہ پیدا کیږی او د بدو پیدایش به نه وے ځکه چہ پښے کښې فوائد کیږے شی. زه دا قدرے تفصیل بانت سے لیس کوم. خدائے دِ مونږ ته هدایت اوکړی او څونږ زړونه دے د شکوکو نه خلاص کړی آمین.

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

او څه دا سے خلق هم شته چہ په خپله دا وائی چہ مونږ په الله او د قیامت په ورځ ایمان راوړے

وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ۝

او حال دا دے چہ هغوی ایمان دار نه دی

په مدینه منوره کښې څه دا سے خلق هم وو چہ د دنیا د نفع او د سختئ نه د بچ کیدو په خاطر به ئے وے چہ مونږ الله رسول او قیامت منو خو پښے کښې د زړه خلوص نه وو او خدائے علام الغیوب دے نو خدائے وائی چہ دا لتش زبانی ایمان څما سره څه قدر نه لری دے قسم خلقو ته په قران کښې منافق ویلے شو بیدے پښے ذکر کولو کښې مومنانو ته علی د ایمان حقیقت او خودے شه د دے تولګی مشر عبد الله بن ابئ دے عربو به د خاد د پاره په جمعه یو سرے مشر کا وو. چہ حضرت رسول خدا صلے الله علیه وسلم لا مدینے ته نه وو راغلے نو د مدینے خلقو د عبد الله په مشرئ تقریبا فیصله کړے وه. خو چہ حضرت صلے الله علیه وسلم راغے نو نقشه بدله شوه. او د عبد الله مشرئ او معتبری لاړه. په خلقو کښې یو روحانی جوند راغے د مشرئ کشرئ د

تله پرهیزګاري او کړ زیده په دې وجه د عبد الله دُنیا پرست ځي عزت پاتې نشه او دده د مسلمانانو او د حضرت سره کینه پیدا شوه خو د اسلام غلبه وه. ده خپل باطني خباثت په ښکاره نشه کولے په دې وجه دے په مسلمانانو کښې ګډ شه او په پټه دے او د مدینې یهود او لس شل دده د تمام خلق د اسلام په بیخ کنے کښې اړم وو. د دوئ ذکر په سورت براءت، منافقون، او د غسے په نورو سورتونو کښې راغلے دے. دوئ په بعض غزاګانو کښې هم نقصان او خلل پیدا کړے وو.

د نفاق سلور درج دی (۱) چه په ژبه اسلام او ایمان ښکاره کوی او په پټه صفا منکر وی. (۲) چه په پټه صفا خو منکر نه وی لیکن یقین هم نه وی بلکه په شک کښې وی (۳) په زړه کښې تصدیق خو وی مګر کامل نه وی د دین نه ګناهونو او د دنیا محبت او د شهواتو غلبے دا سے سړے جوړ کړے وی چه د دنیا په خاطر د اسلام د نوځ مقابله او د اهل اسلام بربادی او د دین بدی د ده په ژبه ځي ګران کار نه وی دا درے واړه د خدائے په نزد سخت کافر دی او د جهنم په ښکتنی برخه کومه درجه کښې به اوسی دا درے واړه قسمه منافقان په مدینه منوره کښې موجود وو (۴) چه وینا یے د حال مطابق نه وی په ژبه یو څه وائي او په زړه کښې ئے بل څه وی دیته تقیه وائي په دے سړے کافر کیږی نه خو دا ډیره ناراستي ده او د نور ایمان او د صداقت د رڼا نه دا قسم مکر او چالاکی کول ډیر لري دی دا کار د خلافت په مسئله کښې د اختلاف په وجه په شیعه خلقو کښې وو. او وس هم چه د اهل سنت زور وی نو دوئ په دے عمل کول د مذهب اجازت ګڼړی د دے منافقانو زباني دعوی او عمل یو شان نه وو. په دې وجه خدای پاک د دوی په

باره کښې فیصله اوکړه چه وَمَا هُم بِمُؤْمِنِينَ دوی مؤمنان نه دی

يُخَادِعُونَ اللَّهَ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَمَا يَخْدَعُونَ إِلَّا

دوی بیچیل خیال کښې په دے منافقئ سره خدائے له او هغه کسانو چه مومنان دی حاله دا چه دوی دهوکه نه ورکوی

أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ۝

ځان خپل له او دوئ د ناپوهئ په وجه نه پوهیږی

منافقانو په دے ظاهر داری او بے ایمانئ کښې دا غوښتله چه خدائے له او مومنانو له دهوکه ورکړی حالانکه خدائے علام الغیوب دے هغه د دوی د زړه نه خبر وو او د دے حالِ خپل مومنانو ته هم په واسطه د پیغمبرؐ ښکاره کړو نو منافقانو په دے دهوکه کښې ځان له د دنیا او د آخرت رسوائی اوګټله ۔ شعور د یو څیز د ناکار والی خه والی معلوم کولو طاقت ته وائی په دے کښې حیوان او انسان برابر وی لکه څناور او ورته نه دا نګی ځکه چه دا ورته نقصانی خکاری ۔ نوکو یاد امنافقان د څناورو او مره شعور هم نه لری چه د خدائے غوندے لوئے ذات او د مومنانو د دهوکے په خاطر منافقی کوی کوم خلق چه د مسلمان ، د بزرګ او د صوفی یا د نیک لیډر او راهنما شکل جوړ کړی او خلقو له دهوکه ورکوی ۔ ځان له جائیدادونه ، دولتونه پیدا کوی او د ګلډے په خرمن کښې شریک وی خاص کر د اسلام د دوستئ په نوم چه د اسلام بیخ کنی کوی دا ډیر لوئے جرم دے او منافقی ده ۞

فِي قُلُوبِهِم مَّرَضٌ فَزَادَهُمُ اللَّهُ مَرَضًا ۖ وَلَهُم

د دوئ په زړونو کښې (د شک او انکار) ناجوړتیا ده خو (الله په زیاتی د اسلام سره) د دوئ ناجوړتیا نوره زیاته کړه پس د دوی د پاره

## عَذَابٌ اَلِیْمٌ بِمَا كَانُوْا یَكْذِبُوْنَ ۝

ددے دروغو په وجه (ادعائشي اسلام) دردناك عذاب دے

ددوئ کینے خو دا غوخته چه مسلمانان ژرك شي خو خدائے پاك اسلام له روځ تر روځ ترقي ورکوله نو ددوی د کینے مرض ورسره ورسره زیاتیده. باران که بچپلو دريو ..... خوږے میوے پیدا کوی نو په دے باران باندے ترخ، ازغی دارے ونے هم د خپل تخم او اصل مناسب په ترخو میوو او ازغو کښې زیاتے کوی. که جسماني مرض د سړي په اوږو کړو کښې فرق را ولی نو دغسے روحاني مرضو نه لکه کینه، شهوت، د دنیا محبت او دروغ د انساني جوند په باقاعده ګئے او کمال کښې زوال را ولي. او په روح کښې مړاوے والے راځي او چه د مرض دارو نه وی نو انجام مرګ دے. دغسے چه د روحاني مرض عمر ډیرشي نو روح مړ شي د اد دنیا شغل یو قسم بیهوشي ده په دے کښې موږ نه پوهیږو چه موږ د روح په کوم مرض کښې ګرفتار یو. خو چه د ظاهري جسماني جوند پرده لرے شي او مرګ یا هوش راشي نو بیا به را ته دردناك عذاب معلوم شي. زادهم الله کښې د مرض د زیاتي نسبت د ختم الله هسے دے بنده مجبور محض دے بلکه اختیار لری حقیقتاً د مرض د زیاتي سبب بنده دے او خدائے خالق دے ځکه هغه ته مجازاً نسبت دے. دا خبره به هر ځائے کښې یاد لرئ ؛

## وَاِذَا قِیْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا فِی الْاَرْضِ قَالُوْٓا اِنَّمَا

او هر کله چه دوی ته او ویلے شي چه تاسو په زمکه کښې فساد مه کوئ لو دوئ وائي چه

## نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ ۝ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ وَلٰكِنْ لَّا یَشْعُرُوْنَ ۝

موږ خو صلح کونکي یو خو حقیقت دا دے چه دوئ فسادیان دي لیکن شعور نه لري

د فساد نه مطلب یا خو د ګناهو نو کول دی. ځکه چه د ځمکے او اسمان رونق والے د خدائے په تابعداری باندے موقوف دے د دوئ په زړه کښ دومره ناجوړتیا ده چه د خه اویل په مینځ کښ جدائی نشی کولے د دوئ په دے دوړنګی کښ دا ښکاره فساد وو چه کافرانو به وے چه په اسلام کښ هیڅ رتیا او ښائشت نشته ځکه دا منافقان په اسلام کښ داخل دی او باقاعده ګناهو نه کوی او زړهٔ ئے خوښ ساره دے. که په اسلام کښ څه صداقت وے نو دوئ به ولے موږ ته مائل وو. دے طرف ته مسلمانانو ته هم د دوئ د ذات نه نقصان وو ځکه چه د اسلام دعوی ئے کول او دا سے په ښکاره ګناهو نه کول د نورو خلقو د زړونو نه د خدائے ترسهٔ د جذبے لرے کولو سبب ګرزیده نو د دوئ عمل په کافرانو کښ غلط فهمی پیدا کوله او مسلمانان به ئے د اسلام نه شک منه کول. په دے فساد دوی نه پوهیده او دینه دوی اصلاح وے

کوم انسان چه کوی ګناه او هیڅ ته ګناه نه وائی نو هغه تباه کیږی د ده شعور او احساس مړ دے د کافرانو سره به دینی معاملو کښ دوستی کول قطعًا حرام دی دنیا په جهل مرکب کښ ګرفتاره ده. څوك د خدائے خوشالی د ښانو په عبادت کښ ګرزی څوك په درے خدایانو منلو کښ د یو خدائے منل ثابتوی. په زړګونو خلق چه په ګنګا کښ غوپه شی نو دا د پاك والی سبب ګرزی، معامله ارخلق ښیه او روغ په لین دین کښ ډوب دی نه مرك ته اُزګار دی او نه ئے جوند جوند دے په سوونو دنیا پرست د حاکمانو خوشامند کوی او د عهده و مرتبو په حصول کښ سرګرم دی اور دیته ګنهه، ترقی او عقلمندی وائی خو چه د دے طرف نه ساترګے پټے شی نو دا خپل کارونه به ښکاره ښکاره په خپل خپل خدا او ویل شکل کښ اووینی. بیا

به افسوس کوی نو وخت به تیر وی خدا یه ! ته مومن نه د اشیاء حقیقت ارخې امین

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ

او چه ووی شی دوی ته چه ایمان راوړئ په شان د ایمان د نورو مومنانو نو دوی وائی چه آیا ایمان راوړو مونږ

كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ ۝

په شان د بې وقوفانو خبردار دا منافقان بې وقوفان دی خو دوی نه پوهیږی

کد ناصحان دیته اړوائی چه حقیقی ایمان راوړئ چه د فتنه فساد او د دنیا د لفت نه ځان پرې

اوزی او د عالم باقی حصول مطلب اوګرځی نو منافقان د دے په جواب کښې وائی چه مونږ

د بې وقوفانو په شان ایمان راوړو د خیالی جنت او دوزخ د پاره د دنیا مطلبونه

پرېږدو او اخرت چالید لے دے دا نقدی عیش پکار دے ۔

خرس باش و خوک باش و یا سگ مردار باش

هر چه باشی باش عرفی اندکے زردار باش

شرمخ یا لیوه شه یا مردار سپے ځان نه جوړ که ته

هر څه شه عرفی خو د پیسو خاوند چه جوړ شے ته

چه د مسلمانانو زور وی د مسلمانانو سره لاس نیول پکار دی او پټ د کافرانو سره هم

ساز باز پکار دے ځکه چه که د دوئ دور راشی نو چه بیا د دوی سره هم لار جوړه شو

وی د دوی په جواب کښې خدائے پاک وائی چه خبردار شی دا خلق بې وقوفان دی

دوئ هر روځ وینی چه څرنګې سبا شته ظلمی او څرنګې بادشاهان او عیش کونکی خلق د ژړګونو

منو نو خاوره دے د لاندے ختیګی ۔

ے

طاقت م وے چہ اُمکرے نتپوس ددے بخیل

قبر کبنں چہ پروت خزانے دِ چرتہ لارے

دا جلسے او میلے عیش او عشرت چہ مونږ پرِ نازیګو یقینا ختمیږ ونکی دی څہ وړځ کہ حمونږ جوند دمرګ دتورے لاندے تیریګي نو بیا دے څہ اعتبار دے پہ یقینی جوند باندے دا فانی خوشالی اغستل ډیرہ بے عقلی دہ۔ مونږ لہ دوړو ھسے پہ یوہ مہہائی دانے قیمتی څیز ونہ پر یښود ل نہ دی پکار هر کلہ چہ عالم اُخرت حق دے او ھلتہ تلل ھم حق دی او حمونږ ھادی پیغمبر صلے اللہ علیہ وسلم ھم حق دے او ھغہ وعدہ ھم حقہ دہ نو بیا شک کول حماقت دے د فساد پہ ذکر کبنں لَا یَشْعُرُوْنَ لفظ ځکہ راوړے شہ چہ فساد خو یو ښکارہ خبرہ دہ چہ بیا ے ھم نہ پوھیږی نو د ځناور نہ بہ ھم کم وی۔ او ایمان راوړل یو نہ ښکارہ خبرہ دہ دا پہ نظر سرہ معلومیدے نشی پہ دے وجہ ددے ... د پارہ علم پکار دے نو چہ دوئ پہ ایمان نہ پوھیږی نو لَا یَعْلَمُوْنَ دی د دنیکئ دوہ جزء دی یو د بد د خبرو نہ بچ کیدل دی ددے ذکر پہ لَا تُفْسِدُوْا کبنں او شو او بل ښہ خبرو عمل کول دی نو دا پہ اٰمِنُوْا کبنں ذکر دے

وَاِذَا لَقُوا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَوْا اِلٰی شَیٰطِیْنِهِمْ ۙ

دا منافقان خلق چہ د مسلمانانو سرہ یو ځائے شی نو وائی چہ مونږ ایمان راوړیدے او یوائے چہ د کافرانو سرہ یو ځائے شی

قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ۝ اَللّٰهُ

نو وائی چہ مونږ خو پہ اصل کبنں تاسو سرہ یو مونږ د مسلمانانو سرہ توقے کوو۔ خدائ بہ

ے

طاقت م وے چہ اُمکرے تپوس د دے بخیل

قبر کبنں چہ پروت خزانے دِ چرتہ لا ړے

دا جلسے او میلے عیش او عشرت چہ مومن پرِ نازیگو یقینا ختمیږ ونکی دی څہ درځ کہ حُوبن جوند د مرګ د تورے لاندے تیرنگي نو بیا دے څہ اعتبار دے پہ یقیني جوند باندے دا فاني خوشالی اغشتل ډیرہ بے عقلي دہ۔ مومن لہ د ورحصے پہ یرہ مہتابی دانے قیمتی څیز و نہ پر لیښودل ندی پکار ھر کلہ چہ عالم آخرت حق دے او ھلتہ تلل ھم حق دی او حُمونږ هادی پیغمبر صلے اللہ علیہ وسلم ھم حق دے او ھغہ وعدہ ھم حقہ دہ نو بیا شک کول حماقت دے د فساد پہ ذکر کبنں لَایَشْعُرُوْنَ لفظ ځکہ راوړے شہ چہ فساد خو یو ښکارہ خبرہ دہ چہ بیا ئے ھم نہ پوھیږی نو د ځناور نہ بہ ھم کم وی۔ او ایمان راوړل یو نہ ښکارہ خبرہ دہ دا پہ نظر سرہ معلومید ے نشی پہ دے وجہ د دے ... د پارہ علم پکار دے نو چہ دوئ پہ ایمان نہ پوھیږی نو لَایَعْلَمُوْنَ دی د دنیګئ دوہ جزء دی یو د بد د خبرو نہ بچ کیدل دی د دے ذکر پہ لَا تُفْسِدُوْا کبنں او شہ او بل پہ خبر وعمل کول دی نو دا پہ اٰمِنُوا کبنں ذکر دے

وَاِذَا لَقُوا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَوْا اِلٰی شَیٰطِیْنِهِمْ ۙ

دا منافقان خلق چہ د مسلمانانو سرہ یو ځائے شی نو وائی چہ مونږ ایمان راوړے دے او بیا چہ کلہ د خپلو شیطانانو سرہ یو ځائے شی

قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ۝ اَللّٰهُ

نو وائی چہ مونږ خو پہ اصل کبنں تاسو سرہ یو مونږ د مسلمانانو سرہ توقے کوو۔ خدای بہ

# يَسْتَهْزِءُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ

دوی لره د هغوی سزا ورکړي او دوئ له مهلت ورکړی چه په سرکشئ کښې ټکرې وهي

مؤمنانو ته په منافقانو ځکه ځان مسلمان ښکاره کاوو چه دوی نه په مال غنیمت کښې برخه واخلی او کافرانو ته به یې خپله اصلی عقیده خوله او چه اعتراض به پرې راغې چه تاسو خو مسلمانانو سره د اسلام اقرار کړېدے نو دوئ جواب اوکه چه مسلمانان ساده خلق دے موږ ور پورې ټوقې کوو او موږ د مسلمانانو رازونه معلوم دو او دنیوی فائدے ترا خلو. خدای پاک د دے جواب کوی او وائی چه دوئ د دے ټوقو سزا په دنیا کښې بیا مونده چه هر وخت ذلیل او ذلیل په مجلس خپله صفائی کوی خوار او ذلیل وی دوئ په دے نه پوهیږی چه دا مهلت د دنیا د دوئ د پاره باعث عذاب دے په نیکانو مؤمنانو پورے چه ټوک ټوقې کوی لکه نن روح ځموږ په خلقو کښې داسے دراغے کیږے شی دا قسم خلق د منافقانو د ټولګی نه دے په ظاهر کښې مسلمانان دی او په حقیقت کښې بل څه دی. نیک او مؤمن خو پرېکړه په بخی کس پورے ټوقې کول د مسلمانان شان نه دے مسلمان والے او ټوقې او ټوکې بے عزتی دا نه شی جمع کیدے خدائے پاک ځنی موږ د داسے ټوقمارو خلقو نه شمار نه کړی.

علامہ اقبال رح

پانی نہ ملا زمزم ملت سے جو اس کو
پیدا ہیں نئی پود میں الحاد کے انداز

او به که د زمزم ورنه کے دوئ له په تا دی
پیدا دے په خلقو کښې د کافر د کور جورساز

خرما نتواں یافت ازاں خار کہ کشتیم
دیبا نتواں یافت ازاں پشم کہ رشتیم

کھجورے بہ زانوړي تہ د شپول د غنونہ
دیبا بہ نہ جوړہ نکړے د وړیو نہ پہ هیڅ جوړ

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت تِّجَارَتُهُمْ

دا منافقان هغہ خلق دے چہ هدایت ورکړہ او ګمراهي ئے را غښتہ کړه د دوئ دا سوداګري فائدہ مندہ نہ دہ

وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ۝

او نہ پہ سوداګري پوهیږي

دا د منافقۍ پوره سزا ده چہ دے منافقانو هدایت پرېښودہ یعنې هغہ جوهر انسانی چہ د خدائے د طرف نہ یو پیدائشي هدایت دے چہ هر چا تہ اول کښې ورکیدے شي هغہ دوئ پہ عارضي دنیوي فائدو ضائع کړہ دوئ د هدایت پہ ذریعہ چہ څہ اخلاق حاصلہ ولے شو هغہ ئے پہ بد واخلاق بدل کړہ او دا خیال ئے کړہ چہ ګټہ موږ داسې داخہ دہ. پہ خولې مو کلمہ توحید او وے د دنیا مال او غنیمت پرې حاصل شہ څو مره اسانہ ګټہ ده او ښوه خو خدائے پاک وائي چہ د دے فاني خوشالۍ پہ بدل کښې دوئ د هغې ابدي خوشالۍ نہ محرومہ شو معلومیږي دا چہ دوئ د سوداګرۍ پہ کار نہ پوهیږي. عمر ډیر عزیز او بیش قیمت دولت وے پہ دے کښې روحاني رڼا او د ابدي ژوند سامان حاصلول پکار دي. دنیوي مال، دولت، عیش او آرام حاصلول او دا بیش قیمت وخت پہ دے ضائع کول بړ نادانی دہ ؞



مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّا اَضَاءَتْ

مثال د منافقانو پشان د هغه سړي دى چه لا ړ د کړي وي د لاد سونډ د پاره اور بل کړي چه دا اور د هغه نه رڼا کړي

مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ۝

نو د خدائے قدرت دى چه شغله مړه شي رڼا لاړه شي تياره پاتے شي سترگے ړندے شي څه نه وينى

صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْیٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ۝

دوئ کاڼه گونگيان ړانده دى دوئ د گمراهۍ نه نه را گرزي

د مدينے منورے ټولو خلقو په اول اول کښ خو د حضرت ﷺ په راتلو خوشالی کړے وے او په وئ باندے د اسلام رڼا غوړيدلے وه۔ جهالت او شهوتو نه تړلے شوے وو خو لگے روځے پس بعض خلق د دنيا د غرضونو او د فانی لذتونو په وجه په منافقۍ کښ گرفتار شو نو هغه رڼا اگانے د دوئ نه لرے شوے او بيا په تيارو کښ حيران او سرگردان شو۔ د دوئ د دے حالت بيان په دے مثال کښ او شه

يا هغه پيدائشی رڼا چه په هر انسان کښ امانت پرته ده پکار دا وه چه د رسول ﷺ د راتلو په وخت کښ دوئ په دے رڼا کښ ډير زياتے کړے وے او د نيکئ بدئ نه خبر شوے وے خو معامله د دينه خلاف او شوه چه د نفاق، تعصب، عناد او د مال د محبت بادونو او سيلو هغه شته رڼا هم مړه کړه او دوئ کاڼه شو چه حق نه اوری۔ گونگيان شو چه د خپل زړه ناجوړتيا روحانی حکيم ته نه بيا نوی ړانده شو چه د قدرت دا لويه کارخانه نه وينی چه خدائے پرا ويچينی نو د هدايت طرفے ته لارے دوئ په ځان بندے کړے۔ يا د اور د رڼا نه مطلب دا دے چه کلمهٔ توحيد او وے۔ او غنيمت او د جان مال حفاظت پرے حاصل کړه خو چه مړه شو نو دا ظاهراری

او د تنګئ برکئ دیوه مره شوه او د ناکاره کارونو په سزا او د قبر په تیرو کښې لاس مروړونکي
پاتې شو هلته نه څه کته کولے شي او نه د هغه ځائے نه بهر نه د راتلو څه شکل شته -

اَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمٰتٌ وَّرَعْدٌ وَّبَرْقٌ ۚ

یا د دے منافقانو مثال د باران هسے دے (د باران په وخت کښې) تورے تیرے وي ګرهاري او بریښنا وي (د دوي په سترګو کښې تیارې)

يَجْعَلُونَ اَصَابِعَهُمْ فِيٓ اٰذَانِهِمْ مِّنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ ۗ

د وېرے د مرګ نه ګېنیلو غوږونو کښې ګوتے ګرځوي (خکه چه ګرهارے نو منع کولے نه شي)

وَاللّٰهُ مُحِيطٌۢ بِالْكٰفِرِينَ ۝ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ

او د الله قدرت په هر حال کښې په دوي احاطه کونکے دے. چه بریښنا زیاته شي نو دوي دا ویسے شي کو د دوي د سترګو نظر لاړ د

كُلَّمَآ اَضَآءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيهِ ۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا ۗ

او چه رڼا اوبیني نو په تلو روان شي او چه تیاره شي نو او دریږي (نو خلق د باران نه فائده اخلي او دوي

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۗ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

که خدای او غواړي نو کاڼه او ړانده به شي (او دوي نه به د ګرګو کیږدو او سترګو نه هیڅ فائده ورنه شي) بېشکه خدای په هر څه قادر دے

د منافقانو مختلف حالات د اسماني باران سره مشابه دي په باران کښې سرا سر نفع ده اګر که په ظاهر کښې په باران کښې بریښنا ګره هاري ورېځے تیرے هم وي. بعض بني ادم چه د باران دے سختو نه ګوري نو د باران نه نفرت کوي او تختي دغسے د همیشه جوند د پاره چه کوم باران د اسمان نه د وحي په نوم ورځي پرده کښې هم وعید و نه د خاص خاص عبادات کول او پابندي شته چه د دینه منافقان تختي او په غوږونو کښې ګوتے کړای چه وعظ وانوري لیکن که د هادي برحق دا تراخه دارو او نسکے شي نو روحاني شفا چرته مونده شي

ځکه چه د خدائے د علم احاطه په ټول مخلوق عموماً موجوده ده هیڅ څوک تر تحقیق ئے
نشی کند بیر په بے بنیاده قلعه کښ پناه موندل ګران دی. د خدائے د حکمونو تعمیل او
قدرے په ځان سختی خه ده چه د تیر وکند و نه سرے بچ شی. په دنیا کښ یو حکیمان او
فلسفیان دی او بل پیغمبران دی. د حکیم نظر د خپل تجربے په بنا وی یو حکیم تر څه حده
تجربه اوکړی او فیصله اوکړی چه بس د دے شی سبب دا دے. فلسفی طبیعت خلق په دے
یقین اوکړی. څه کلونه پس حکیم بل څه اووائی خلق د هغے تابعداری شروع کړی. دا
خبره څه بده نده تجربے کول او د څیزونو سببونه لټول بد نه دی علم دے او پوهه
ده خو دومره عرض دے چه د حکیم د اجتهاد نه زیات علم لرونکی د لوے خدائے د علم
د چینے نه سیراب خلق پیغمبران دی. خالق خدائے چه د مخلوقاتو نه ویخبر دے
هغه خپلو پیغمبرانو ته په خپله مهربانئ (وهبی) علم ورکړی. حکیم د انسان
شاګرد دے او په دے علم معلومات بیا نوی. نبی د خدائے شاګرد دے. په دے پوهه
خپل ارشادات ښکاره کوی. تاسو له پکار دی چه لوے استاذ او وړوکے استاذ
د لوئے شاګرد او وړوکی شاګرد په مینځ کښ فرق اوکړئ او تر څو چه د دوئ د معلومات
قدر پکار دے هغسے د دوئ په معلوماتو عمل اوکړئ. منافقان د اسلام د بریخنا
په حالت کښ ټله کوی یعنے د مسلمانانو نه ظاهری فائدے مومی. د غنیمت په مال کښ برخه
اخلی. یا دا مطلب دے چه د پیغمبر معجزے وینی چه پر تیزی نو په هغه وخت کښ یئے زړه
تصدیق کوی او چه معجزے او وعظ ونصیحت نه وی نو دوئ بیا د شکونو په ځنګل کښ
سر شی. د خدائے د قبضے او د اختیار دائره ډیره لویه او بے حده ده هغه هر څه
کولے شی د خاص مصلحت په وجه داسے نه کوی. هغه د دنیا ټول کافران، او الهی احکام

نه مخ ګرزوونکی خلق په هیڅ هلاکولے شی لیکن د خپل حکمت بالغه په وجه دا سے نه کوی
خدائے پاک دا انسان د هدایت او د ګټے د پاره عقلے ذریعے مهیا کړیدی خو انسان دا
خبرے د ځان د پاره قید ګڼړی د هغے نه تختی - او د همیش کیږئے جوند ځان د پاره مرګ ګڼړی

يَا أَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ وَالَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ

اے خلقو د خپل پروردګار عبادت کوی کوم چه تا سو پیدا کړی یی او هغه خلق پیدا کړیدی چه ستا نه مخکښې وو د

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً

ګود ے د پاره چه د نا فرمانئ نه بچ شوی هغه پروردګار چه ستا سو د پاره ځمکه د فرش پشان خوره کړیده او آسمان د چت پشان

وَأَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَأَخْرَجَ بِهِ مِنَ الثَّمَرَاتِ رِزْقًا لَكُمْ

او چت کړے یے دا خو د هغه خدائے د آسمان نه اوبه وروی او شم قسم میوے ستاسو د خوراک د پاره پیدا کوی

فَلَا تَجْعَلُوا لِلَّهِ أَنْدَادًا وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝

(چه خالق او رب هغه دے) نو دا سے او نکئ چه بل څوک د ده د هستئ برابر جوړ کړئ او تاسو پوهیږی چه بے د ده بل څوک نشته

هغه خدائے چه ځونږ او ځونږ نه د ټولو مخکښو خالق دے - حاکرف هغه د معبودیت مستحق دے
ځونږ خیالی او وهمی معبودان چه ځونږ په پیدائش کښې هیڅ حصه نه لری ځونږ معبودان نشی
ګرزیدے د عبادت غرض د خدای لوړتیا ده هغه په ځونږ د عبادت نه هم لوړ دے
بلکه پدے به په مونږ کښې دا سے رڼا پیدا شی لکه آئینه چه نور نه اخلی او د نور نه
رڼا په آئینه را اوړزیږی - آئینه پخپله روښانه شی او نور خلق هم روښانه کړی او نور
هم حال په خپل اصلی رڼا باندې وی - که د ګل په رومال کښې د کیږدو په وجه رومال
خوشبو یه کیږی نو د خدای سره په راز و نیاز به ضرور په انسان کښې خدائی صفات
څومره چه د سړی طاقت وی راشی او د غه وجه ده چه سومره څومره خدائے نه نزدے

والے کیږی دومره دومره په انسان کښې د عامو خلقو په نسبت زیات غیر معمولی اثر
پیدا کیږی نو د لوی نه لوئے اثر پیدا کولو د پاره ضروری ده چه د لوی نه لوی ذات
ته په عجز و نیاز عبادت اوشی او که په ځان کښې حیوانیت او درندګی پیدا کول وی نو د
ناکاره نه ناکاره مخلوق سره تعلق پیدا کول، هغه محبوب او معبود جوړول او خدائے نه
غافل کیدل د دے سبب دے. الله ځمونږ خالق هم دے او هغه ځمونږ د پاره زمکه داسے
د آرام ځائے جوړ کړے دے چه نه ډیره سخته او نه ډیره نرمه ده. ځلورم حصه اُچه ده
چه مونږ پکښې آباد یو. د پاسه خدای پاک کو ته آسمان جوړ کړے دے او د آسمان زمکے
پیدا ایش د دے د پاره دے چه دا دواړه طاقتونه ځمونږ د میلمستیا د پاره قسم قسم
میوے، غلے، د خوشالئے د پاره کلو نه پیدا کړی. دا درے صفتونه د الله د معبودوالی
دلائل دی، خالق، رب او رازق که دا صفتونه صرف په الله کښې وی او یقیناً صرف
په الله کښې دی نو مونږ دِ ولے هغه څوک معبود کړو چه هغه لدے صفتونو نه یو هم په
ځان کښې نه لری او ځمونږ هسے بلکه بعض ځونږ فرضی معبودان خو ځمونږ نه هم زیات متاز
دی. که مونږ لږ سر په کړ یوان کړو نوا دو به بلی چا ته تندے او نه ټکوو. او بل چا
ته به خوله رچینګه نه کړو.

دا یو داسے عام خطاب دے چه د د ینه مومن کافر او منافق در یواړه قسمه مخلوق
اندازه لګولے شی چه ځما معبود څوک کیدے شی او دغه د قرآن شریف اصلی مطلب دے
چه مونږ خدائے پاك او پیژنو او خرنګ چه د دنیوی جوند د پاره شپه او ورځ سرګردان
یو د ابدی جوند د پاره هم د اصلی خالق سره تعلق پیدا کړو او هغه چه دالدکوم روحانی
خوراك مقرر کړے دے په کومه زمکه کښې چه لوئے شوے دے د هغے نه په خپل روح کښې

جونه پیدا کړو. کوم څیزونه چه د انسان د خوراک قابل نه دی هغه هم ثوک، نه خوری نو کوم
څیزونه چه د روح د پاره مضر یا زهر دی هغه استعمالول نه دی پکار. دیته تقوی وائی
که عقلمند سړے د خوړو او نه خوړو څیز پیژنی نو مومن د کولو کارونه او د نه کولو کارونه پیژنی
دغسے لیونے او بیهوشه سړے څه اوبه نه پیژنی نو کافر او منافق هم د نیکئی او بدئی په
میچ کښی څه امتیاز نه کوی لکه د دے جونه تیرږی ؛

د کړکۍ ضرورت

ژن برابر شریک نه وائی کوم عبادت چه د خدائے پکار دے لکه دعا، نه سجده کول
که د اپل چا ته اوشی نو دا شرک دے او دا سے خوبن نا پوه به خلق په قبرو نو کښی کوی
او خوبن منجاوران طرف خپله گټه ته نا ستوی د دے پرواه نه کوی چه دا مونږ به
څه گمراهئ کښی گرفتاریږ
بل چه کوم نذرونه او نیازونه د خدای په نامه ورکیدے شی. دغسے بل په نوم
نذرمنل چه که څما دا کار او شه نو که به فلانکی (بابا، ولی، یا بل چا) سخه حلال
کړم دا هم د خدائے سره شرک دے په دے معامله کښی خوبن اسلامی ریاستونو د
د ملک سپینه دوبوا وخاص کر عالمانو له پکار دی چه د خدائے په خاطر د خدائے په مقابل
کښی دا صفا مشرکانه رسمونه بند کړی د پوڅو تنو دکانداری به خراب شی. خو د توحید
حقیقت به واضح شی -
عیسایان ترادسه مسیح خدای گنړی او د هغه نه هر قسم مدت غواړی سوالونه تر
کوی. یهودیان حضرت عزیر او دیر صالحان او امیران د حاجتو نو پوره کونکی او د
مصیبت لرے کونکی گنړی د عربو خلقو د حضرت اسمٰعیل او حضرت ابراهیم په نوم
یو بت خاص په خانه کعبه کښی د عبادت د پاره ایخے وو. لات او منات هم د صالحانو په نوم

بتان وو هندوانو دغسې ځانله په بت خانو کښې مهادیو، بشن، کرشن، رامچندر، هنومان بتان جوړ کړی دی په دوئ حلالې کوی نذرانې پرې کدی سجدې ورته کوی. سوالونه ترې کوی. دوئ نفع ورکونکی او ضرر رسونکی گنړی د دې دتردید دپاره اُعْبُدُوْا رَبَّكُمُ حکم اوشه چه د غیرالله داسې مری توب لکه څرنګې چه د خدائې پکار دې حرام دی او دغه پوا هم قابل ترین سبق دې چه په اسلام کښې اوس هم موجود دې څوک د پښتنو په ملک کښې دې تفسیر کتونکی صاحبان اوګوری چه څومره د توحید د تبلیغ ضرورت دې او د توحید مسئله څومره نامعلومه ګرزیدلې ده تاسو نه ګوری چه عام خلق وائی او مونږ دې اوردو چه دالفصان را نه څکه اورسیده چه ما د هغه بابا په نوم چه کومه مقرره نیاز کړیده هغه ما ورنکړه یا ما د هغه بابا زیارت اونکړه دا کار مې څکه اوشه کله اتفاقا د چا مطلب اوشی نو د هغه سبب په ځانې د خدائې پیر، ولی او قبر ګنړی.

د خدائې پاک په یواځې معبود والی دلائلو دې عجیبه ترتیب ته اوګورئ او د قرآن شریف د عمده کلام والی لطف معلوم کړئ. اول توجه د انسان ځان ته پیدا کوی چه د هغه خدای عبادت اوکړئ چه خَلَقَكُمْ تاسو ئې پیدا کړی یئ انسان څرنګ چه په ځان علم لری داسې په بل څه نلری انسان به اوګوری چه ځما دا وجود سر نګ اوشه؟ او زه اخر چا پیدا کړم؟ ځما دا ښکلی ظاهری او پټ اندامونه او قوتونه په داسې عمدګی سره چا د یو نظام لاندې را وستنه؟ د دې جواب هر سړې د خپل فکر مناسب بچیپله کولې شی چه داهر څه د داسې ذات په مهربانی دی چه د همیش نه دې او همیشه به وی د هغه د ذات شریك نه شته او نه به اوشی دغه ذات د کاملو صفتونو مالك دی چه دا ورته ثابته شی لونیا تدرتی خبره ده چه د دې ذات سره تعلق کول د ده د جوند لوئې او اخری مطلب اوګرځی کو یا ځوئن دا وجود یوه آئینه ده چه په

دے کښې غور سره په کتلو د الله پاك جلال او جمال ښکاري د دينه پس دويم دليل د
نورو مشانو طرف ته توجه ورکول دي د دوي په حال د ځان هسے تصور نه علاوه دا فکرهم کيدے
شي چه څومره مخکښې هغه بے شماره مخلوق چه په هغې کښې لوي لوي زور اور، خائسته بادشاهان
د کمال خاوندان هم وو د هغوئ يا د کارونه د هغوئ به حال دلالت کوي آخر د دوي دا
جوند او مرګ د دوي دا دا تلل او بيا د دنيانه تلل چه د کوم ځائے نه راغلو او بيا چرته لاړه
ايا دوي بخپله راغلو که بل چا راوستي وو. دا د قدرت کتاب چه او کورى نو د ده په
زړه کښې به يو عجيبه نورانيت پيدا شي او په سري يو راز پرانستيدے شي او دا ورته
صفا ښکاريږي چه د دے خولوانسانانو پيدايش طرف د ښيکو د کتلو د پاره وو ځوك
چه په دے مطلب پوه شو نو خپل ژوند به خه فکر او عبادت کښې تير کړه او ځوك چه پوه نه
پوه شو نو هسے عمر خراب کړه ❖
دريم دليل زمکے او اسمان ته کتل دي په دے دواړو ځايونو کښې چه کوم خزانے
دي او څومره د فائدے د پاره چه کوم څه په دے کښې پراته دي هر سړے به د خپل فکر
مناسب په دے لټ او ډير غور اوکړي او پوي به شي چه د دومره لوي قدرت او قوت
خاوند ضرور د دے قابل دے چه څومره معبود شي. حکيمانو او عاقلانو هميشه د څيزونو د
حقيقت او حالت معلومولو د پاره کښې د خپل قوت مناسب کوشش کړيدے کله پوئے
نتيجے ته رسي او کله بيا نه هميشه به دا سلسله په دغے اختلاف کښې پرته وي. الهامي کتابونه
د دے حقائقو نه بحث نه کوي او نه د دوئ دا کار دے دا يواځنئ کار دے په دے کښې د
حکيمانو اخته وي. ظاهربين خلق د ظاهري اشياء په حقيقت کښې هميشه ګرفتار وي الهامي
کتابونه د عالم روحانيات نه د پاك والي په ذريعه او سببونو بحث کوي د دے جوند

په دے عارضي سبا ئُشت الهامي کتابونه څه خاص کار نه لري - الهامي کتابونه دَدے جوندانه ډیرلوئے اوګډ اوابدي جوند خپل مقصد خولے دے - اسمان او ځمکه که ولاړ وي اوکه ګرزي که په یوبل د پیا زسے پرانه دي اوکه لړے لړے وي په هر حال دَخدائے د قدرت نظارے پکښې موجودِ دے انسان له پکار دي چه د داسے قادر خدا ای سره ځوك معبود او شریکے جوړ نه کړي د توحید مسئله که د یوعقلمند په عقل کښې راځي نو نا پوهه یه پرِهم پوهیږي په دلائلو کښې سومره سادګي او عام فهمي ده - خو دلرے توجه ضرورت دے

وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ

اوکه تاسو په قرآن شریف کښې شك کوئ لږه ټیټے دادَخدا ای د طرف نه نه دی او دا کینیے بنده جوړ کړي دے) نو تاسو هم یو سورت

مِّنْ مِّثْلِهٖ وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ

داسے جوړ کړئ او خپل حول زور او ر خلق بے د خدا ئے نه زور اوګوری که تاسو رښتني یئ

فَاِنْ لَّمْ تَفْعَلُوْا وَلَنْ تَفْعَلُوْا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ وَقُوْدُهَا

دلے که تاسو داسے او نکړه او حقیقت دا دے چه تاسو هیڅکله داسے نشئ کولے نو بیا دی ځه هغه او رونه او ډیر ګبچه ئې د لرګو ځائے

النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ اُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ۝

بنیادم او کا نړئ زي او د منکرانو د پاره جوړ دے

په تیر شوي ایت کښې دَخدای د عبادت حکم وو او د توحید اعلان وو دَدے د پاره انساني عقل ته د غور دعوت ورکړے شو چه ایا د واحد خالق رب خدای عبادت پکار دے او که نه ؟ چونکه انسان دَخاورو ختمو نه جوړ دے او خدای خالص نور دے شاید چه انسان په دے کښې شك او کړي او دے مطلب ته اونه رسي په یو جبر یو

له هغه دی او رالیکل دپیغمبر چه هغه کره جوړه د خدائے رسیدو د ته مطلب طریقه بله

ته هغوئ دی شکیان چه خلق کوم او بیا شی ورکیدے کتاب اسمانی او علم بخښتی

شویدے لوئے خارکښې په ستاسو سره تاسو دے نبی امی پیرا محمد رسول دا چه شی ویلے

که دے راغلے شریف قران بانی په ما ای دخدا خالص ده په - ویلے ندے سبق دچانه ده

د سره قول تاسو نو دے کړیدے جوړ وکړو سوم بچپلو یا بچپله محمد دکتاب دا چه وایئ تاسو

بلکه نه شریف قران قول او ونکوئ او زور خه شئ راجمع نو پیرا ، عالمانو ، بنانو ، غتو نرو هغه

اونکړه داسے تاسو که او وی مبنی حقیقت په څه شك ستاسو بیا نو کړئ جوړ سورة یو

معلومه خو بیا نو شی اونکړے داسے تاسو به هرګز چه وائی سره یقین په اوخدای

پاك خدائے د پاره دکونکو انکار دلیلا دبے او دے دلیله بے شکست ستاسو چه شوه

بلکه سوزی نه لرګی کښې هغه په چه دے اورد داسے کښې هغه په او دے کړے جوړ دوزخ

وی اوګټے دی ادم بنی به خشاك د هغه

په قران شریف کښې په مختلف سورتونو کښې په مختلف رنګ کښې د مقابلے دعوت

ورکړے شویدے پدے سورة او په سورت یونس کښې خو د یو سورت برابر جوړولو

دعوت دے چه د دینه اخوا بل لشته او په سوره هود کښې داسے دے چه فَأْتُوا

بِعَشْرِ سُوَرٍ مِثْلِهِ مُفْتَرَيَاتٍ وَادْعُوا مَنِ اسْتَطَعْتُم مِنْ دُونِ اللهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ

لس سورتونه جوړ کړئ که تاسو بچپله دعوی او شك کښې خو صداقت لرئ او بے د خدائے

نه د هرچا نه چه مدد غواړئ او غواړئ او په سوره اسرا کښې لَئِنِ اجْتَمَعَتِ الْاِنْسُ وَ

الْجِنُّ عَلٰٓى اَنْ يَّاْتُوْا بِمِثْلِ هٰذَا الْقُرْاٰنِ لَا يَاْتُوْنَ بِمِثْلِهٖ وَلَوْ كَانَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ ظَهِيْرًا ۱۰

که قول بني آدم او پېرېان یو ځای شي او د دې قرآن په شان جوړول اغواړي او قول
د یو بل مدد هم او کړي نو دوی به داسې او نکړی شي چه سوره قصص کښې داسې دي

قل فأتوا بکتاب من عند الله هو اهدى منهما اتبعه ان کنتم صدقین، که تاسو رښتني
یئ نو د خدای نه یو بل کتاب راوړئ چه د قرآن نه زیات هدایت کوونکی وي زه به
هم هغه اُمنم گویا که د قرآن برابر جوړ ولې شي که نیمه جوړولې شئ که څلورم وي او که
یو سورت وي خو راشئ او خپل صداقت ثابت کړئ څومره عجیبه ترتیبي دعوه ده
او د کافرانو په کښې ډېر یو جز یا کل د مقابلې څومره عاجزوالې دې؟ افسوس دې
په داسې حق او یقیني کتاب باندې د بې عملۍ څومره زور دې؟ د دې کامل مکمل کتاب
په مقابله کښې انساني کتابونه څومره لوئ گڼلې شي؟ د دې جوړ نظام په مقابله کښې
باطل نظام تعلیمي او د باطل حکومت د مشین مونږ څرنګ ورې او لوئ پرزې جوړېګو؟
اې خدایه مونږ د قرآن شریف په قدر پویه کړې او په ځای د باطلو نظامونو
مونږ په نظام قرآني روان کړې.

شهداء د دې مختلف معنې کانې دي. حاضر، مدد کوونکی، حاکم، گواهي ورکوونکی
په دې آیت کښې دا څلور واړه معنې کانې کیدې شي. چه کوم فصیح او بلیغ عالمان حاضر دي
هغوئ راولغواړئ او د هغوی نه مدد واخلئ. یا کوم خلق چه تاسو هغوئ د ځان د پاره
مشکل کشا گڼلي او تاسو به تې سوالونه کول په دې مشکل کښې د هغوئ نه مدد او غواړئ
یا په فیصله کوونکو فیصله اُکړئ. چه تاسو پخپله و بیا و مقابله کښې څومره صداقت او طاقت
لرئ دوی به ستاسو د کلام او د قرآن په مقابله کښې تاسو له فیصله درکړي.

د جاهلیت په زمانه کښې بعض کاهنانو داچل جوړ کړې وو چه دوئ به وزنه اراو

قافیه دار کلام وے او داسے به نۀ وے چه داسے مونږ سره پیریان کلام کوی جاهلانو
به په دے کلام لوے مجمع کړے ولے او دے کلام ته به نۀ فصیح او بلیغ وے په دے ایت کښ
په وړی باندے هم یو تعریض او شه چه دا قرآن شریف د پیریانو کلام نه دے او نه د رسول
کاهن دے که چرے ستاسو دا خیال وی نو زدر او لګوئ او د خپلو بتانو او دیوتاګانو نه
مدت واخلئ یقینی خبره ده چه تاسو به داسے او نکړے شئ - د اهل اسلام په دے اتفاق
دے چه قرآن مجید بذات خود یو معجزه ده د ده په شان جوړول د انسان د طاقت نه
باهر دی د مضامینو خوبی په ډیر میانه کلام سره لوئے مضامین بیانول د کلام فصاحت
او بلاغت د قرآن خاصه ده او دا اعجاز په قرآن شریف کښ څکه کیښودے شه چه د عرب په
خپل فصاحت او بلاغت ډیر غرور وو - خدای پاك دوی په دے کلام عاجزه کړه او د
قرآن شریف الهی کلام کیدل ثابت شو

وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي

او زیرے ورکړه (محمده ﷺ) هغه کسانو له چه د ایمان لار اختیار کړه او نیک عملونه ئے هم اوکړه چه یقیناً دوی د پاره جنتونه دی چه بهیږی

مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ كُلَّمَا رُزِقُوا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِزْقًا قَالُوا هَذَا

به لاندے ترنه ولے هرکله ارچه دوئی له څه برخه د جنتی میوو نه ورکړے شی نو دوی به وائی چه دا خو

الَّذِي رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا وَلَهُمْ فِيهَا أَزْوَاجٌ

هغه نعمت دے چه مونږ له په دنیا کښ راکړے شو (او دا به څکه وائی چه د یو بل سره مشتا تیز به وی له ورکیدی شی) او دوی د پاره به

مُطَهَّرَةٌ وَهُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

نیکے او پاکے بیبیانے دی او دا دوام به همیشه دی

اول د عبادت حکم او شه او معبود حقیقی او ښودے شه چه هغه یواځے د قدرتونو خاوند الله

دے دهغه صفات مخصوصه بیان شو چه هغه په بل چاکښ نشته بیا د عبادت دمقبولیت
د پاره د پیغمبرؑ فیصله ضروری ثابته شوه د نبی او د کلام الٰهی قرآن صداقت بیان شه
او منکرانو د قرآن ته خپل انجام جهنم اوخودے شه اود جهنم هیبتناك کیفیت هم بیان
شه د ضرر نه حفاظت اول بیانول فصاحت دے بیا د ایماندارو او صالحانو جزاء په
دے اٰیت کښ بیانیږی دا د قرآن شریف عمده ترتیب دے. كُلَّمَا رُزِقُوْا په دے
اٰیت کښ د عالم اٰخرت د اسرارُ طرف ته اشاره ده. د دے نه مطلب دے چه په اٰخرت
کښ به څوك دا خه او په عملونه خپل خپل مناسب شکلونه اختیار کړی څرنګ چه د یو سړی
نیکی په خوب کښ د میوو په شکل کښ ښکاره شی دغسے د جنت میوے به د دنیا د
نیکو اعمالو شکل وی په دے دوارو کښ به داسے یو شان والے او مناسبت وی چه بنی اٰدم
به د دے په لیدو سره داسے اووائی چه دا خو مونږ رومبیه بیا موندے وے او په دنیا
کښ مونږ خوړلے وے دغسے کفر او لامذهبی او قول بدکاری به د اور او سړی خور
دوزخ په شکل کښ ښکاره شی

جنت او د جنت حقیقت کما حقہٗ بیانول څوك د علم نه باهر دی خو بیا هم داعرض
دے چه په جنت کښ به دا جسم وی او نه به بل مادی جسم وی دا دنیا او هغه عالم جدا
جدا دی د یو په بل قیاس کول غلط دی خدای پاك د دے په باره کښ وائی يَوْمَ تُبَدَّلُ
الْاَرْضُ غَيْرَ الْاَرْضِ وَالسَّمٰوٰتُ په دغه روځ به بله ځمکه او بل اٰسمان وی. د هغے زمکے او اٰسمان
جسمانیت به هم د دے زمکے اٰسمان هسے نه وی۔

د عالم اٰخرت پوره مثال خو به نه وی لیکن نزدے به ورته وی چه په اٰئینه
کښ هاتھی، اٰسونه او وغ بخپل حقیقی صورت کښ ښکاره کیږی لیکن په هاتھی او د

هغه په عکس کښې فرق دے. دا لوئ اسمان هم په ائینه کښې ښکاری حالانکه ائینه یو لیشت قد دے ده او اسمان لوئ شے دے داځکه چه اصلی هاتی او اسمان وغیره بل شے دے او عکس ئے بل دے او س که څوک دا اووائی چه هاتی څرنګ په ائینه کښې راغ او اسمان څرنګ په ائینه کښې ښکاری نو دا د هغه خپله ناپوهی ده۔

یا مونږ په برستن کښې نغښتی پراته اوده یو او په زړګونو عجیبه عجیبه حالات د بیو کله باغونو کښې ګرځو او تړدے حده چه صحبت په کښې اوشی او د هغې علامه سحر په پړتوګ کښې پرته وی دا قولے خبرے خیالی ږی په دے تنګ کټ او برستن کښې نه د دنو د راتلو ګنجائش دے او نه ترمونږ تلی یو ولے د دے حقیقت نه انکار نشی کیدے دغسے د دے دنیا څیزونه جسم عنصری لری او فانی دی او د عالم اخرت څیزونه لطیف او باقی دی دے ته ایت شریف اشاره کوی فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ مَّا اُخْفِیَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ اَعْیُنٍ، نفس نه پیجنی هغه څیزونه چه مونږ د ددی د پاره پټ جوړ کړیدی چه د ددی سترګے به پرې یخ شی. یا حدیث شریف اَعْدَدْتُ لِعِبَادِیَ الصَّالِحِیْنَ مَالَا عَیْنٌ رَأَتْ وَلَا اُذُنٌ سَمِعَتْ وَلَا خَطَرَ عَلٰی قَلْبِ بَشَرٍ، د نیکانو د پاره داسے جنت تیار شویدے چه نه سترګو لیدلے او نه غوګونو اوریدلے او نه د چا انسان په زړه کښې د غه نقشه تیره شویده۔

څونږ د نوی تحقیق یب عاشقان په جنت او دوزخ دغسے په تولو څیزونو پورے خندا کوی کوم چه دوی ته نه ښکاری د ددی دا خیال دے چه دنیا خو دغه دنیا ده چه څونږ په نظر رازی نورهیڅ نشته او د دے اثرات پر فارسی شاعرو دا سے بیا نوی

---

## نوے تهذیب

الحذر از فتنهٔ تهذیب نو | تیره باطن، سست پیمان، تیز رو

واے پناه نه د تهذیب نوی ئی نداے خدایه | باطن تور وعده کمزور ورفتار کښی تیز دروان

مرد و زن شانه بشانه روبرو | بزم عشرت در جهان رنگ و بو

نر او ښځے لاس پلاس سره ملګی او د کښی نیمه | چرته مجلسونه رنګا رنګ چرته عیشونه دی

با خدا گستاخ و از مذهب گریز | آدمی با آدمی گرم ستیز

خدائے او په مذهب پورے کوی توقے او خندا | هر سړے د بل سړی دشمن هر ځائے جنګونه دی

فتنهٔ ابلیس بر اوج شباب | از وجودش مشرق و مغرب خراب

وینم د شیطان فتنه چه ډیره پرجوښ کښی ده | د غه علت دے چه مشرق مغرب په شه کباب

إِنَّ اللَّهَ لَا يَسْتَحْيِي أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا فَأَمَّا

بے شکه الله (ذینی او مو د پوی ګولو کړ پاده) یئ خبره کښی حیا نه کوی (چه د یو حقیقت بیان) په ماشی یا د ده نه په کم چیز شر بیا کړی

الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَبِّهِمْ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا

پس کم خلق چه ایمان لری (هغوی پرے فکر کوی) او دا نی چه دا مثال حق دے د طرف د رب نه لیکن هغه خلق چه کافران دی

فَيَقُولُونَ مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا وَيَهْدِي

(هغوی د جهالت په دجه) وائی چه په دے مثال کښی د الله څه مطلب دو ډیر خلق به پخپله نادانی بے لارے شی او ډیر به پخپل

بِهِ كَثِيرًا وَمَا يُضِلُّ بِهِ إِلَّا الْفَاسِقِينَ ۝ الَّذِينَ يَنْقُضُونَ عَهْدَ

عقلمندی لار بیا مومی (د خدای قانون دے) چه هغه نه ګمراه کوی مګر هغه خلق چه د خدای سره پاخه لوزونه ماتوی

اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مِيثَاقِهِ وَيَقْطَعُونَ مَا أَمَرَ اللَّهُ بِهِ أَنْ يُوصَلَ وَ

او صله رحمی پریږدی او

## يُفْسِدُوْنَ فِي الْاَرْضِ اُولٰئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ○

فساد په زمکه کښې کوي (او د هدایت قول حدونه ماتوي) او دا سړي يقيناً زيان کاران دي

کافران چه د قرآن شريف د مثل د راوړلو نه عاجزه شول هيله دا ئې راوړه اعتراض اوکړه چه قرآن شريف د خدائے کتاب څنګه نه دے چه په دے کښې د يو مطلب ثابتولو د پاره د وړه وړه مثالونه بيان شوي دي او په بعض ځايونو کښې د څناورو مثالونه ذکر دي لکه په يو ځائے کښې دا سے مثال دے چه د کافرو بتان دا سے کمزوري دي چه يو مچ نشي پيدا کولے بلکه که مچ د دوئ په مخ کيني نو دوي د دے د ځان نه شي شړلے بعض ځايونو کښې دا سے مثال دے چه د کافرانو د دين مثال د جولاګۍ لېشان دے د دوي په جواب کښې دا آيتونه نازل شو چه درو که او لوئے موږ ته پېر نه پېږ يو مخلوق ته ويلے شو خدائے د ټولو لويو وړو خالق دے او په هر څيز کښې د هغه مناسب ستر که، غوګونه چپ، بوندئ مرلك، ځواني او بل هاوالے دے که د يو خبرے د پاره په ماشي يا د ماشي نه په کم څيز مثال بيان شي نو دا د ولے د قرآن د شان خلاف وي دا سے مثالونه د حقيقت کتونکو د پاره د حق د پيژندو ذريعه جوړه شي او کافران خلق د ناپوهئ په وجه په دے مثالونو اعتراضونه اوکړي او د دوئ د ګمراهئ سبب جوړ شي دا ګمراهان هغه خلق دے چه په ازلي وعده ټينګ نه دي او د اتفاق په ځائے فساد کول د دوي کار وي چه پلوانو رحم نه کوي

د دے دعوت د مقابلے په وخت کښې مشهور جادوګر او کاهنان راجمعه شوي وو. مسيلمه کذاب چه يو مدعي نبوت وو هغه ځه "الفيل وما الفيل وما ادراك ما الفيل ذنبه قليل وخرطومه طويل وانه من خلقة ربك لقليل" غونډے نثر عبارتونه جوړ کړي وو، خو د عربو خلق، سره د کفر نه ډير منصف مزاج وو په دے قسم عبارتونو پورے

هغوئ پخپله قوتے اوکړے چه چرته قرآن اوچرته داخرافات

الهامی کلام د یاران پشان دے د اُبو نه په خوړه کښې ازغی پیداکیږی او دغه اُبه په باغ کښې رنګارنګ ګلونه راټکوی. دغه نکا نوروحونه هدایت مومی د عالم اٰخرت دابدی جوندی تلاش کوی او د هغې حصول غواړی او د بعضو د ګمراهو سبب جوړیږی د چاقوت نظری او عملی چه دواړه خراب وی هغوئ په فانی جوند کښې ډیر زیات مشغول شی نو د اٰخرت نه بے پرواشی.

په انسان کښې د پیدائش په وخت کښې چه د ملکی قوتونو سره دبهیمی قوت تړون کیږی نو د هغې نه وعده اخستے شی چه کوری دواړه د اعتدال او برابری ذمه واریې هسے نه چه په فانی لذتونو کښې ګرفتارشی او صفات ملکوتی ضایع کړی د پیدائش او ځوانئ نه پس څوك په دے وعده ټینګ پاتے شی او څوك په بدو عملونو شروع شی. او هغه علمونه او عملونه شروع کړی چه د هغې کول نه وی پکار د اُوخ هسے بے مهاره اُسیګی ګویا یو باغی وی د خدائے پاك په ملك کښې اوسی خو د خدائ حکم نه منی د خدائے پاك د قضا او قدرت نه خلاصیدے نشی ډیر په زیان او تاوان کښې جوند تیر کړی او اٰخر هم خوارشی ؛

حیا دید نامی د ویرے نه یو کار نه کولو ته وائی دلته د اعتراض کو نکو لفظ نقل شه ورنه خدائے پاك د حیا نه ویره نه کوی دلته به د حیا نه مطلب پریښودل وی. د غضب نه مطلب انتقام، د رحمت نه مطلب نفع رسول دی.

فسق وتلو ته وائی لکه فَسَقَتِ الرُّطَبَۃُ عَنْ قِشْرِهَا چواره د خپل پوست نه رااووته په شریعت کښې د خدائے د حکم نه وتلو ته فسق وائی د دے دوه قسمه دی. تعالی ګناه

گناه ناکاره گڼزی خو د نفس د خواهش په وجه گناه کوی ـ انهماك. په گناه دومره عادت شی چه بیا گناه ته گناه نه وائی، جحود ـ گناه خه گڼزی او خلکه یے کوی د خدائے اودرسول حکو هم نه گڼزی په دے دریمه درجه کښ چه څوك شی کافر شی او اولنی دوه چه دی نو هغه لا کافران نه دی ـ

عهد هغه څیز ته وائی چه د هغے حفاظت او رعایت کیدے شی لکه وصیت او قسم شه کور ته هم عرب عهد وائی ځکه چه بنی ادم د هغه حفاظت کوی. تاریخ ته هم عهد وائی. د الله تعالیٰ عهد هغه دے چه د ازل په ورځ په عالم روحانی کښ د ټولو اروا حو سره شوے وو او ټولو روحو نو اقرار کرے وو چه الله صرف یو دے دیته په دے ائیت کښ اشاره ده چه وَاِذْ اَخَذَ رَبُّكَ مِنْۢ بَنِیْۤ اٰدَمَ مِنْ ظُهُوْرِهِمْ ذُرِّیَّتَهُمْ

كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ

(ای خلقو) تاسو څرنګ د الله نه (او د هغه د عبادات نه) انکار کولے شی حال دا دے چه ستاسو وجود نه وو هغه جوند درکړو (پیدا ئی کړی)

ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ۝ هُوَ الَّذِيْ خَلَقَ لَكُمْ مَّا فِي الْاَرْضِ

کړی او مرګ نه پس به بیا تاسو دوباره ژوند درکوی او په اخر کښ د هغه حضور کښ پیش شئ او کوری چه هغه ذات دے چه هر څیز د زمکے نه ستاسو د پاره

۳ع ۹ ۳ جَمِيْعًا ثُمَّ اسْتَوٰۤى اِلَى السَّمَآءِ فَسَوّٰهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ وَّهُوَ

پیدا کړیدی بیا هغه د اسمان طرف ته متوجه شو او او هغه اسمانونه ئے جوړ کړه او هغه

بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِيْمٌ ۝

په هر شه علم لری

چه د قرآن پاك اعجاز او د خدای پاك د طرف نه نازیدل ثابت شو نو اوس خدائے د

هغه نعمتو نو اظهار کوی چه د قولے دنیا د پاره عام دی بیا یکښی د هغه قوم خصوصیت نشته
په دے ذکر کښی د ابتدا او انتهاء هم ذکر او شه. تاسو د خدای د یو والی خالق والی او نورو
صفاتو نه څرنګ انکار کولے شی حالانکه تاسو بے جان بلکه نشت وئ نه پتا سو کښی چرې
نه حرکت وو نو خدای پتا سو مهربانی اوکړه چه شته شوی یعنی یو خدای ستا سو موجد
او خالق دے بیا به څه موده پس تاسو مړه شی او تاسو د مرګ نه خلاصیدے نشئ دا اختیار
د خدای او یوازے د خدای دے. بیا ئے تاسو لره بیا ژوند درکړه. ګو یا د انسان دوه
ژوندونه او دوه مرګونه دی، بیا به تاسو څه موده پس د هغه په جناب کښی حاضر شئ
هلته به د ربوبیت اقرار اوکړئ او د خدای پاک یو والے به هم او منئ خو هغه وخت به تاسو
ته په دے اقرار کښی څه فائده وی؟

دا خبره د عقل نه خلاف ده چه کوم خدای په مونږ دومره مهربانی کړیده او
اینده به هم مونږ د ده مهربانئ ته محتاز یو او د هغه د عذاب نه هم ډیره ده
د غه خدای به جزاء او سزا ورکوی. د داسے لوی خدای نافرمانی کول او د هغه
د رسول د حکم نه خلاف د قران او د رسول نه انکار ډیره د تعجب خبره ده. او
سخته بے عقلی او نادانی ده.

د دے ایت نه دا ثابته شوه چه انسان حادث او ممکن دے خدائے پاک د
نیست نه هست کړه د خدای په لاس کښی ځمونږ مرګ او ژوند دے حشر او حساب کتاب
حق دی د خدای سخه حاضری ضروری ده د دینه دا معلومه شوه چه قول د روحونو د
خدای پاک نه دا غلی دی او دا روحونه به بیا خدای سخه زی تر دے د ایجاد او پیدائش
ذکر دے خدای پاک چه انسان پیدا کړه نو ورسره د ده د ژوند د پاره ئے هم انتظام

اوکړه چه دا لو یه زمکه او اسمان خالص د انسان د پاره پیدا شو ونه سره سپین او ښتاور قول د انسان د فائدے د پاره دی بیا یکښې بعض څیزونه څوونږ بے واسطے په فائده رارازی او بعض په واسطے سره فائده مند ثابتیږی زهر، تریاق، جری، بوټی ملغلرے، غلے، میوے او مختلف شیئکی بلکه دا قول زمکه چه څومره څومره کورے د انسان د فائدے د پاره جوړه ده او پس د دینه د اسمان د پیدایش اراده او شوه چه که زمکه د مور کار ورکوی نو چه اسمان د پلار کار ورکړی د میوو پوخ والے د سمندر د نو دیروالے للهې والے بخارات او د هغے نه باران، بجلی، واوره، کلئ دا قول د خدای پاک په حکمت او علم سره پیدا کړے دی او دا څوونږ د روحانی جسمانی پالنے د پاره جوړ دی که دا قول نظام د خالق خدای وی او یقینا د خدای دے نو دا به څومره د تعجب خبره دی چه تا سو دا موږ د هغه خدای پرینږدو او د بل مخلوق عبادت مری توب او فرمان برداری اکو۔

د زمکے او د اسمان د اول اخر او د ښته والی نه ښته والی په باره کښې حکیمانو د خپل خپل عقل په مناسب به مختلف زمانو کښې مختلف دینا کانے کړیدی او مخکښې به هم د غسے اختلاف وی۔ عنا صرچه مخکښې حکیمانُ صرف سلور منل او س سلونه نزدے شوی د دے نه به تاسو اندازه او لګوئ چه د یو حکیم د بل حکیم سره اتفاق نه دے راغلے او نه به راشی د خدای علم او حکمت بے حده او په جزاً باندے دے بیا یو جه خدای پاک د قرآن د صداقت په باره کښې دا دلیل وائی چه قرآن ځکه د خدای کلام دے چه په دے کښې اختلاف نشته تحقیق کول پکار دی نو خپل تحقیق به هغه او مره درجه کښې منل پکار دی چه څومره محقق وی هسے نه چه مخلوق محقق د خالق حکیم سره برابر کړے شی. مګر د مخلوق محققانُ تحقیق په تفسیر کښې بیانول ضروری نه ګنړم ځکه چه د هغے د پاره نن روځ دیر

کتابونہ موجود دی۔ کہ کہ دے نو صرف د قرآن د اصلی موضوع د بیان دے۔ تفسیر کتونکی صاحبان به ما پې دے معامله کښې معذور اوګڼړی۔

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّیْ جَاعِلٌ فِی الْاَرْضِ خَلِیْفَةً قَالُوْٓا

اوهرکله چه ستا رب فرشتو ته اووے چه زه په زمکه کښې یو خلیفه جوړ ول غواړم دے ملائکو اووے

اَتَجْعَلُ فِیْهَا مَنْ یُّفْسِدُ فِیْهَا وَیَسْفِكُ الدِّمَآءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ

چه په زمکه کښې داسے سړے خلیفه جوړ وے ته چه په زمکه کښې به فسادکوی او بیګناه وینے به توی‌وی حالانکه حمد وایو موږ

بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ قَالَ اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ۝

ستا او ستا پاکی بیانوو الله پاک اووے چه زه په کومه خبره پوهیږم په هغے تاسو نه پوهیږی

د الله د نعمتونو ذکر شروع دے اول ځونی پیدائش او ځونی د پاره زمکه او اسمان او د هغے په مینځ کښې ځونی د فائدے څیزونه پیدا کول بیان شو. دویم ځونی د مینګه ادم پیدائش دے چه د هغه پیدائش دومره لوئے نعمت وو چه د پیدائش نه مخکښې خدای پاك د هغه د پیدائش خبر ملائکو ته ورکوی او غرض ئې دا دے چه هغه او د هغه په اولادکښې به پیغمبران د خدای حکمونه خلقو ته رسوی چه دا خبر ملائکو واوریدو نو هغوی پوی شو چه د چا په باره کښې خدای پاك د پیدائش نه مخکښې موږ خبروی دا به د خدای انړولے ذات وی او چه هغه د خدای حکمونه رسوی نو دا خو خاص لوئې ده پې یو څه زیات تلاش شروع کړه او حیرانه وے چه دے به د څه نه پیدا کیږی نو دا ورته معلومه شوه چه د دغه پیدائش به د داسے اجزائ نه کیږی چه د هغوی په کور کښې سخت اختلاف دے لکه قوت شهوت او غضب شه د دے خو به ضرور اثر زناو فساد وی دا ورته هم معلومه شوه چه عقل به هم لری خو په عقل د دوئ مقابله څه دیره کراند

دہ بلکه دَ دوئ دا خیال وو چہ دا ترکیب دَ حکمت پہ موجب څہ خہ خبرہ هم نہ دہ ۔ ملائکو دَ بحث یا دَ حسد پہ بنا اظهار خیال نہ دے کرے ځکہ چہ دا دَ ملائکو شان نہ دے بلکہ پہ دیرے عاجزی سرہ دا سوال کوی او ځان پوہ کوی چہ دَ دے قوتونو نہ جوړ آدم خپل نائب جوړول ځمونږ پہ پوہ کښې نہ راځی ۔ کہ غرض دَ پیدا ایش لکہ چہ دَ ملائکو خیال وو چہ دَ مخلوق غرض خو صرف دَ خدای پاکی بیانول دی نو ملائکے دَ ځان پہ بارہ کښې عرض کوی چہ دا کار خو مونږ کوو او مونږ دَ قوت غضبیہ او شهویہ نہ خلاص یو خدای پاک دوی تہ خبر ورکوی چہ دَ مخلوق دغہ قدرے غرض نہ وی ۔ دَ آدمؑ پہ پیدا ایش کښې چہ کوم حکمت دے دَ هغې نہ تاسو ځکہ نہ یئ خبر چہ تاسو دا مخلوق مخکښې نہ دے لیدلے ستاسو پہ خیال کښې غضب او شهوت ځان ځان لہ ناکارہ شے دے خو چہ دا مرکب شی نو د دینہ یو دریم قوت پیدا شی چہ هغہ انصاف ، بهادری پاک لمنی دَ نفس سرہ جهاد وغیرہ دَ صفت خبرے دی دَ دے صفاتو پیدا ایش بے دَ مختلف الطبع قوتونو نہ نہ کیږی دَ آدم غرض یوازے حمد او ثنا ویل نہ دی بلکہ ورسرہ ورسرہ بہ دے دَ کاریګر وایجاد او دَ دنیا دَ اشیاءُ خاصیتونہ او نائب ے معلوموی او بیا بہ هغہ پہ عمل کښې راوړی ۔ دا غرض صرف پہ آدمؑ کښې پورہ کیدے شی ملائکے دَ دینہ عاجزہ دی هم دغہ علم وو چہ دَ دے پہ وجہ خدائے آدمؑ لہ پہ ملائکو فضیلت ورکوی او ملائکے ورتہ پہ عاجزی سرہ تعظیمی سجدہ کوی او دَ ملائکو دَ خولے نہ دَ خپلے نادانئ پہ وجہ اقراری کلمے ویلے کیږی ۔ چہ سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا دا احسان دے چہ پہ انسان شوے دے ۔ پہ داسے حالاتو کښې دَ محسن خدائے تعالیٰ نافرمانی او دَ هغہ آخری نبیؐ دَ احکامُ نہ خلاف تُو مرہ دَ احسان فراموشی نخہ دہ داسے کول دیرہ دَ خپل ځان نہ بیخبری دہ ۔ اے خدایہ ! مونږ دَ خپل ځان نہ خبر کړے ۔

ملائکو ته دا معلومه وه چه په انسان کښې به ضرور دوه قوتونه وي چه یو شهوت دے او د هغې خواهش زناکاري ده یو وجه د آدمؑ په نقص کښې یفسد لفظ اووے او دویم قوت غضب وو چه د هغې خاصیت قتل او جنګونه دی نو د دے ذکر په یسفك الدماء سره اوکړه ملائکے دو بله هم خبر وے چه په زوی کښې دا دواړه قوتونه نشته نو ملائکو د ادب په وجه دا خو نه وے چه ګنې موږ ناکاره کارونه نه کوو۔ لیکن د هغې په مقابله کښې دوی دوه نورے د خدای د لوئي خبرے اوویلے چه په هغې کښې اشارةً د دے عیبو نو لِشت والے معلوم شه په نَحْنُ نُسَبِّحُ کښې چه د یُفْسِدُ په مقابله کښې دے او په نُقَدِّسُ کښې چه د یَسْفِكُ الدِّمَآءَ په مقابل کښې دے دا معلومه شوه چه موږ د خدای د ټولو عیبو نو نه پاك والے بیانوو فساد نه کوو۔ او دغسے په جبه په زړه او په حال سره د خدای پاکي وایو۔ او د ګناه قتل نه کوو یعنے سوال و جواب کښې څومره د خدای پاك د ادب پاس دے او د خپل مطلب اظهار دے۔

## خِلافت

خلافت

دا لفظ د لسو شلو کالو نه څخونږ د پښتنو په ملك کښې هم په لار کوڅه کښې ویلے شي نو په موږ کښې الګ خلق د دے په مطلب پوی دی د ټولے دنیا مسلمانانو د اسلام په مزی کښې پیلے شوی دی د دے ټولو مسلمانانو اسلامي فرض دی چه ځان له یو مشر جوړ کړي او د هغه حکمونه مني د هغه د حکم لاندے بیا په وطنونو کښې د صوبو د علاقو د خادونو د پاره مشران وي او د هغې خلیفه حکمونه مسلمانانو ته رسوی. دا خلافت دے. او س لګے سترګے پټے کړې او فکر اوکړي چه آیا د شپیته کروړه کم و زیات مسلمانانو څوك خلیفه شه؟ او ایا څوك غواړي چه څوك داسے خلیفه وی؟ او که څوك غواړي نو د دے د پاره څوك کار کوی؟

شته ؟ د دے تولو سوالونو جواب یقیناً په نفی کښې دے خو څما نه راوړي چه دا دومره لویه فریضه ولے مونږ پریخے ده دا دومره لوئے تعداد چه خلیفه نه وي د هغوی مثال یقیناً دګلو هسے دے خو آخر دا ولے ؟

د یورپ خلقو څرنګ چه په مونږ کښې نور زهر یله چیچي پریخي دي د هغې نه یو په مونږ کښې دا عقیده پیدا کړه چه وطن پرستي او قوم پرستي د ایمان جزء دے پس یو جه پښتون قوم د پنجابي مسلمان دشمن شه د عربي دشمن شه، د ایراني سره ئے تعلق پاتے نه شه. د چیني روسي مسلمان هم دغسے عقیده جوړه شوه دا د دے وطن پرستئ سپیره توب دے اوس قوم پرستي او کوره که د قوم تعریف په امیر او غریب سره کوے لکه ننن روځ دا تعریف اکثر او ریدے شي نو امیر د غریب دشمن شه او غریب د امیر دشمن شه او چه په یو بل وس رسي نو ضرر ئے په نه کوی او که د قوم نه مطلب پښتان، اوان، دهوبي جولاه دي نو د وطن دا تول قومونه په کور کښې په یو بل حواله شو. دا دومره پراګندګي د یو بل نه مخالفت ولے پیدا شو دا ځکه چه مونږ د یورپ په اُخیار تیا په ځائے د اسلام دوستي په وطن پرستئ او قوم پرستئ اخته شو څومونږ معبود د خدای په ځائے وطن او قوم بلکه یوازے خپل ځان او خپل عزت او کرزبیه او دغه وجه ده چه څومونږ د زړه نه د ټولے دنیا د پاره د یو خلیفه جوړول اُو تل او څومونږ د جمعو او اخترو نو خطبے چه په هغے کښې به د خلیفه د پاره دعا کا ئے دے د دعا کانو نه خالي پاتے شوے بعض د عربئ نه بے خبره خطیبان دغه عبارتو نه هسے لا زائی نو خبر نه دی چه نه خلفاء شته او نه غازیان شته او نه د مغربي تهذیب په برکت او د وطن پرستو قوم پرستو لیډرانو په طفیل دا فرض ادا کید ل او س ممکن دی. زیات تفصیل به مخکښې راځي.

۵

تھذیب کے آذر نے ترشوائے صنم اور
مسلم نے بھی تعمیر کیا اپنا حرم اور
ان تازہ خداؤں میں بڑا سب سے وطن ہے
جو پیرہن اس کا ہے وہ مذہب کا کفن ہے

وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

او آدم ته (د هغه د ذاتی قابلیت په وجه) خدائے د ټولو ځیزونو نومونه اوخودل نو خدائے دا ټول حقیقتونه د ملائکو نه تپوس کړه

فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِىْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ قَالُوْا

چه د خپل علم خبر را کړئ په دا څه حقیقتونه دی که تاسو رشتنی یئ دوی عرض اوکړه

سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ۭ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ۝

چه ټولے پاکئ او لویی خاص ستا د پاره دی موږ خو دومره پوهیږو څومره چه موږ د طاقت برابر تا خودنه کړیئ علم ستا علم دے او حکمت ستا حکمت دے

د آدم د پیدائش اراده او غرض په قرآن شریف کښې ذکر دے او د روح او جسم یو ځائے کیدل او په باره کښې اشارات شته چه هغه به موقعه په موقعه بیانیږی مفصل داسې ذکر لکه څومره زړه چه غواړی دا په قرآن کښې ځکه نشته چه قرآن شریف د شریعت د بیان د پاره دے د پیدائش مسئلے په دوره تفصیل سره بیانول د قرآن موضوع نه ده البته په دے باره کښې پیغمبرانو کشفی بیانونه خپل په احادیثو کښې بیان کړی دی.

د هر منتظم او اصلاح کونکی د پاره ضروری ده چه د کوم ځیز اصلاح کوی نو د هغې په حقیقت دے خبر دار وی او د هغې د فائدے نقصان په خبر دے واقف

وی دَ خدای دَ خلیفه دَ پاره ضروری ده چه دَ طبیبتونو دَ اصلاح کار شروع کوی نو چه هغه دَ طبیبتونو نه اول خبر لری داخو باطنی انتظام دے او ظاهری انتظام دَ شریعت په باره کښې پکار دے۔ دَ یوشی دَ حلال والی حرام والی په حقیقت خبریدل ضروری دی۔ دَ حلالو فائدے او دَ حرامو دَ نقصانونو نه علم یه لری۔ مثلاً نشه حرام ده او کوم سړے چه دَ نشے دَ حقیقت او اثر نه خبر نه وی۔ کَه دَ هغه په مخکښې څوک شراب او سکی او مست شی نو دا سړے به هغه شرابی له څرنګ سزا ورکړی؟ که شرابی او وائی چه زه خو نشه نه یم نو دا سړے به هغه دروغجن کولے نشی ځکه چه هغه دَ نشے دَ خاصیت نه خبر نه دے اول اول حضرت دَ شرابو لوخی ځکه په خلقومات کړه چه دَ شربت په بهانه څوک شراب او نسکی۔ بیا څه موده پس چه حضرت صلے الله علیه وسلم ته تسلی اوشوه نو دَ لوخو به باره کښې ئے اجازت ورکړه دا دَ حضرت صلے الله علیه وسلم واقفیت وو چه دَ طبیبتونو نه واقف وو۔ که حضرتؐ کښې دا واقفیت نه وے نو دا سے حکیمانه طریقه به ئے څرنګ اختیار کړے وه انسان دَ انسان سره یو ځائے په ناسته ولاړه دَ یو بل نه خبریدے شی۔ ملائکه یا پیریان دا واقفیت نشی حاصلولے۔ ملائکه خو ښه پلونکے طبیعت نه لری ملائکه لوګه نه لری نو دَ لوګے دَ حقیقت نه څه خبریدے شی۔

پیریان که ښه پلونکے طبیعت لری خو شر پکښې غلبه دے دَ نیکی طرف ته په کښې میلان ډیر کم دے په دی وجه دَ خلافت غرض دَ انسان نه پوره کیدے شه ملائکه او پیریان دَ څیزونو په حقیقت نه شو خبریدے او دغه خبره ته به عَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَآءَ کښې اشاره ده چه ادم دَ اشیاؤ دَ حقیقت نه واقف وو او ملائکو دَ خپلے عاجزئ اقرار

او کړه چه سُبْحَانَكَ لَا عِلْمَ لَنَا په مونږ کښې د خلافت د پاره چه کوم علم ضروری دے هغه علم نشته مونږ د دینه بے خبره وو چه په خلافت کښې د تحمید تقدیس نه سوا بل څه کیږي هم پکار دی۔

آدم علیه السلام له کله د اشیاءُ د حقیقت علم خدای ورکړه نو دا ملائکو ته هم ورکړے دے شه خو بیا به ملائکے ملائکے نه دے پاتے شوے نو د ملائکو کار وحی راوړل وو۔ د هغې د پاره نه تنبل بلوڼکے طبیعت پکار وو۔ صرف فرمان برداری او تابعداری او د دغه کمی زیاتی نه پیغام رسول ملائکو له شو خو خلافت د انسان د پاره او عارف د انسان د پاره کیږي شه چه هغه پرې ممتاز شه۔ حس و حرکت چه په انسان او حیوان کښې دے کچے دا دنو ته ورکړے شی نو دغه به بیا دغه پاتے نشی۔ او د دنو کار به بیا څرنګ پوره کیږي پس یو جه تول مخلوق په خپل خپل ځائے ضروری دے۔ هیڅ مخلوق د بل مخلوق په باره کښې دا نشی ویلے چه کیږي د دے مخلوق په ځائے نوزه کافی وم ده نه څه حاجت دے

خلافت د آدم علیه السلام سره مخصوص نه دے بلکه هر سړے او خزه اول پخپل ځان بیا په خپل کور کښې په کشرانو دغسے د کلی مشر، د علاقے او ملکونو مشر به په ځان کښې هغه صفات لری کوم چه خلیفه له پکار دی۔ د کوم خلیفه کانو خیو نه چه پخپله خه نه وی پخپله د شریعت پابندی نه کوی پخپله د دین اسلام، اخلاقو، او صفا معاملو نه خالی وی د هغوئ خانګی، د کلی، د ښار، د وطن او ملك خلافت به هم دغسے خراب وی لکه څرنګ چه هغوی دی۔ نن دوزے هر سړے مشهور دیال غواړی خو د مشرئ نه خبر نه دے چه د دے د پاره اهلیت پکار دے د دے د پاره پیریان څکه مستحق نه وو چه هغوئ تش شر شر وو او ملائکے هم د دے قابلے نه وے ځکه چه هغوی کښې د علم کے وو۔ جاهل چه د چا

مشر دی نو دَ هغې قوم دے خدای حافظ شی۔

قَالَ يَا آدَمُ أَنْبِئْهُمْ بِأَسْمَائِهِمْ فَلَمَّا أَنْبَأَهُمْ بِأَسْمَائِهِمْ

او وے خدائے پاک چہ ای آدم ته دوی ته دَ دے حقیقتونو نومونه او خایه پس هرکله چه آدم ملائکو ته دَ دے خبر ورکړه

قَالَ أَلَمْ أَقُلْ لَكُمْ إِنِّي أَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَ

نو خدای پاک او وے چه آیا ما تاسو ته نه وو ویلي چه زه دَ اسمانونو او دَ زمکے په پټو خیزو نو عالم یم او

أَعْلَمُ مَا تُبْدُونَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُونَ ۝

ستاسو په ښکاره خبرو هم عالم یم او ستاسو پټے خبرے هم پیژنم

په علمی رنګ کښ ملائکو ته پوهه کړان وو چه آدم علیه السلام به دَ ملائکو نه څرنګ خروی خو خیر اقرار او کړه چه واقعی حقوق او دَ آدم په مینځ کښ ضرور فرق دے هغه دَ علم په وجه څموږ نه افضل دے موږ صرف عبادت قابل تعریف خیز کا نړه خو په خلافت کښ عبادت دومره مؤثر نه دے ورسره علم ضروری دے چه دَ هغې نه موږ دَ خپل نورانی وجود په وجه محروم یو پس دے ایت کښ عملاً آدم ته حکم ورکړے شی چه ته دے ملائکو ته عملی ثبوت ورکړه چه ملائکے ستا دَ علم مشاهده او کړی چه هغه داسے او کړه پس دے باندے ملائکو سترګے کوزے کړے او خدای ورته پوره بیان او کړه چه تاسو دَ آدم دَ پیدا ایښ حکمت او لیدو؟ ستاسو دَ علم نه خبر شوئی که نه؟ خلیفه به مختلف فیصلے کوی دَ ظالم او دَ مظلوم په مینځ کښ به فرق کوی دا فیصلے په علم سره کیدے شی په عبادت باندے دا فیصلے نه کیږی خو دا هم ثوک نه وائی چه ګنے بے عبادت علم دَ څه کار شے دے۔ بن روځ دیر دَ بے عمر نماز دَ کالج نماز، روجه خواره، دَ دین مذهب نه بے خبره صرف دَ دنیوی علم په وجه دیر مخ وړه دی هغوی دِ پوهے شی چه که صرف عبادت قابل تعریف نه دے نو صرف دنیوی

علم هم دَ انسان دَ پاره هغه دَ صفت خبره نه ده تسبیح تقدیس او علم دواړه یو ځائے کیدل
دَ انسان کمال دے او دا دواړه خبرے انسان حاصلولے شي او هغه انسان به قابل تعریف
وي چه دَ عبادت په وخت کښې مکمل عابد وي او دَ علم په زیور هم خداٰ اراسته وي

**وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ**

او بیا (اوګوره) هر کله چه مونږ فرښتو ته حکم ورکړے وو چه دَ ادم ؑ په مخکښې سجده اوکړئ نو فرښتو سجده اوکړه لیکن

**اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ ۚ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ○**

دَ ابلیس سخت کوک نه شه هغه حکم او نه ما نه لوئي ئے او کړه او حقیقت دا دے چه هغه دَ کافرانو نه وو

دا دَ خدای یو بل نعمت دے چه اول خو دَ ادم ؑ علمی زیاتے په ملائکو ثابت کړے شه او بیا دَ دے
علم قدر کیږي چه ادم ؑ دَ خپلِ علمی لویي په وجه دَ خلافت حقدار اوګرزیده او دے دَ خلافت
په تخت کینا ست رعایا لره پکار دي چه دَ ده اول تعظیم اوکړي په دغه وخت کښې موجوده
مخلوق ملائکے وے جنات وو او ابلیس وو. دوی ته حکم اوشه چه تا سو دَ ادم ؑ خلیفه طرف
تعظیمی سجده اوکړئ. سجده په اصل کښې خدای ته وه خو مخ کول دَ کعبے غوندے ادم ته
وو بیا ئے تعمیل حکم کښې ملائکے فرمان بردارے شوے جنات سر بسجود شو خو ابلیس
سجده اونکړه او دَ دے په باره کښې هغه دلائل اوو ے چه دا دَ غټو چېر مخلوق ادم دے او
زه دَ اور نه پیدا ئیږدے او س پیدا شوې یے او زه دَ عمر نیک یم ده سخه صرف علم
دے ما په زرګو نو کالو عبادتونه کړے دي. خلاصه دا ده چه ده دَ ادم ؑ ادب او نکړه
خدای پاک ته دا اول نه دا معلومه وه چه که ملائکے صرف تعمیل حکم کوي. عابد زاهدي
صرف نیکی نیکي ده خو دَ خلافت اهلیت په کښې نشته دَ غسے دَ ابلیس دَ اور نه پیدا ایش
دا سے شے وو چه دَ هغه کار هم غرور وو، تکبر وو، سرکشي وه. بیا ه کښې دَ خلافت اهلیت

نه وو د خلافت حقدار هغه آدمؑ دے چه د نرمئ په وخت کښې نرم وی او د عدل او انصاف
په موقعه کښې د رحم په ځائے رحم کوی او د قیام امن د پاره سزا ورکوی، ابلیس کینه کر
وو او کینه په ګناهونو کښې لویه ګناه ده. خپل ځان د بل نه غټ ګنړل او د چیلے لرېي د
پاره دلیلونه کتل دا د شیطان سبق دے چه خپلو شاګردانو ته ئے همیشه ورکوی. د دے
آیت نه دا ثابته شوه چه د الله تعالیٰ د حکم په منلو کښې تادی پکار ده سستیا حیله
بهانه نه دی کول پکار د خدای د حکم په منلو کښې عقل بازی او دماغ سوزی کول د
بندګئ شان نه دے په داسے تحقیق سره دیر ګناه ګار سرے د فائدے په ځائے نقصان
کوی د خدای بے حده علم او حکمت دومره لوے دے چه مونږ که د خدای په حکم
کښې ګستاخی او کړو، غرور او لوئی او کړو نو ذلیل او خوار به شو د دښمنی ذلت او خواری
د سارو هسے غلامئ وجه صرف څونږ د خدای نه بے پرواهی ده که مونږ د خدای پاک
او د هغه د احکامو تعمیل ته طیار شو نو یقینی ده چه مونږ به د خلافت مستحق شو
په مونږ کښې څوك د ملائکو هسے عبادتونه کوی او د هغه علم نه محرومه دی کوم چه د
خلافت د پاره ضروری دے ارڅوك د خلافت مناسب علمونه خو حاصل کړی لیکن دوی
دومره دلیل باز او مغرور شی چه د خدای د احکامو تابعداری خلاف شان ګنړی. د
قرآن شریف، د نبی او د هغوئ د احکامو نه مخ کړوی د بوره کامل مکمل قانون په ځائے
ځان ل. بچپلو جرګو کښې انسانی قانون جوړوی نن جوړ کړی او صبا ئے دغه قانون مات
کړی خلافت صرف علمی مسئله نه ده. مسلمانانو خلیفه ګانو د هغه قسم رعیت د پاره په الهی
قانون د امن نه ډك خلافت عملاً کړے دے څوك شته چه د خلافت په مسئله غور او کړی
ارزیانی که د واړه طرفو نه او وینی او د اسلام میانه حاله لار اختیار کړی؟ که یوه پایه

کا ده نه ځي نو د خلافت د داره علمي عملي تیارے دے په ځان په قوم ، په تابعدار مشران
کښې پیدا کړي او بیا د هغې نه دے د خلافت خوبونه ویني۔

وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا

او ومونږ اٰدم ته اوئے چه اوسه ته او بي بي ستا او خورئ له دینه فراخ چرته چه خوښه شي

حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هَٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظَّالِمِينَ

څرنګ چه خوارئ او ازامن سره اوسئ مه نږدے کیږئ دے ونې ته بس شئ به تاسو د حق نه تیریدونکي

فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطَانُ عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ وَقُلْنَا اهْبِطُوا

بیا او ښویول هغه د دوي دواړو شیطان د دے جنت نه او ئې خکله دا د دواړه د دے آرام د ځائ نه او اوئے مونږه چه کوز شئ

بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ

تاسو به هر یو دبل دشمنان یئ او ستاسو د پاره په زمکه کښې اوسیدل دی او تر یو وخت پورې به فائده اخلئ

شیطان چه خپل ځان د اٰدم علیه السلام په مقابله کښې ذلیل او لید نو اٰدم ته د ضرر په خیال کښې شه
شیطان کافي عبادت او ریاضت کړے وو. د علم نفسیات ماهران په دے پوهے دي چه یو نفس د
خپل صفائی په وجه د یو د لوړے نه په بل نفس اثر غورزولے شي نو شیطان په هر ممکن طریقه سره
اٰدم علیه السلام ته تکلیف رسول شروع کړه. بل طرف ته اٰدم ته په جنت کښې چه د هر څه نږدے
دو سره د خپلې بي بي د اوسیدو اجازت ورکړے شه خو د یوے ونې نږدے والي ئې په هم منع کړه
ځکه چه د نیوي ونې مختلف خاصیتونه لري په دغه ونه کښې دا خاصیت وو چه د انسان وجود
بیا په جنت کښې د اوسیدو قابل نه پاتے کیده. د اٰدم علیه السلام پیدائش خو د خلافت د پاره
وو او خلافت به په ځمکه کښې کیدے شه نو جنت ته د اوسیدو د پاره تلل په دے غرض وو چه
ته اٰدم د دنیا په شان شوکت کښې داسے مصروف شي چه د جنت دا نعمتونه ترهیر شي نو اٰدم ته

د جنت نعمتو نه او سو دے شو چه د دنیا په فانی نعمتو نو د جنت نعمتو نه پرے نکړئ د شیطان او د آدم ذکر په قرآن شریف کښې په سورۀ اعراف کښې دړے ځایه راغلی دے (۱) شیطان آدم ته وائی اے آدم زه تا ته هغه د همیش کیدو ونه او نه خیم او کوره نه که خدائے د دے ونې نه منع کړے ئے نو په دے وجه چه که تاسو دا اوخوړئ نو ملائکے به شئ او په جنت کښې به همیشه اوسئ. او دے شیطان ورته په الله قسم اوخوړ چه ځما په دے کښې ځان له څه مطلب نشته ځما مطلب تاسو ته نصیحت کول دی" د دے وسوسو نه آدم علیه السلام په دے وجه متاثر شه چه یو خو شیطان د الله تعالی په نوم قسم اوخوړ نو د الله تعالی لوئي د آدم په زړه کښې دومره وه چه هغه دا یقین نه شه کولے چه د خدای په نوم څوک به په دروغه قسم خوړے شی. بل د جنت د نعمتو لطف دومره وو چه په جنت کښې همیشه اوسیدل د دنیا د خلافت په نسبت آدم غوره ګڼړل، بل د ونې نه منع آدم علیه السلام دومره تاکیدی حکم نه ګاڼړه چه ګنې د دے په خلاف به آدم د جنت نه اوزی او بله دا چه آدم علیه السلام خو به اصل کښې د جنت د اوسیدو د پاره نه وو بلکه دے خو په زمکه کښې د خلافت د پاره پیدا شوے وو او خلافت به په زمکه کښې کیدے شه په جنت کښې اوسیدل خو عارضی وو او آدم بهر حال انسان خو وو د هغه نه که ګناه نه شه کیدے نو د الله تعالی او د انسان په مینځ کښې چه کوم فرق به لږ غونے خطایی سره کیدے شی دا لغزش کیدل هم ضروری وو. په ونې خوړلو سره د جنت نه اووت او د کرم غرض د پاره چه پیدا وو د هغې د پاره زمکے ته راکوز شه

د دے جنت او د دے ونې په باره کښې مفسرینو ډیر څه لیکلی دی خو زه د ... دے کافی ګڼړم چه کرم دے عرض اوکړه د بی بی حوا د پیدا ایښ د آدم علیه السلام د پیدا ایښ ذکر په احادیثو کښې موجود دے. خو څرنګ . . . . . . . . . . . . . . .

دَچا دَ پیدائښ مفصل حالات معلومول څه اهم غرض نه دے دومره معلومه شوه چه دَ
ادم علیه السلام دَ پاره دَ انسان والی په وجه دَ یو ے جوړے فطرتی خواهش ورخه ای نه
په اول اول کښې په غیر معمولی طریقے سره چه څو بز په دے محدود عقل کښې نه راځی څنګه
حکمت سره ئے ادم علیه السلام له جوړه پیدا کړه چه دے پرِ مانوس شی او دَ خلافت په فرض
ادا کولو کښې کوتاهی ارنکړی . دا سوال چه څرنګ پیدا شوه؟ دَ کوم ځائے نه پیدا شوه؟ څومره
روځے پس پیدا شوه؟ دا دَ قرآن موضوع نه ده په دے باریکوکښې ځان غورزول دَ مطلب نه دَ
ځان لرے کول سبب جوړیګي په دے واقعه کښې دَ ادم او دَ هغه دَ بی بی علیهما السلام تاریخ بیانول
مطلب نه دے چه ګنې دَ قصے هر هر جزء دے مونږ ته معلوم شی غرض صرف دغه وو چه خلیفه به
د نیوی خلافت کوی خو دَ جنت خیال به هم ساتی او خلافت داسے نعمت دے چه دے به هر
وخته دَ شیطان دَ وسوسو نه باخبره او سیږی خلیفه به دَ پاک جوند تیرولو دَ پاره ځانګی
حالات داسے جوړوی چه دَ ده په خلافت داغ رانشی که خلیفه دَ شیطان په وسوسو کښې راشی
نو ارام به ئے په بے ارامئ بدل شی دَ ترقی په ځائے به تنزل اوکړی خلیفه په اصل کښې یو لوئے
اهم کار دَ پاره خلیفه دے چه انسان فطرتًا دَ یو بل سره مخالفت لری نو خلیفه دَ دوی په
مینځ کښې انصاف کوی که دَ یو خلیفه په خلافت کښې عدل او توازن کم نشی نو دا خلیفه دے خلافت
برکلیدی دے دَ دے فرض ادا کولو قابل نه دے خلیفه به بنی ادم ته دا نصیحت کړی چه دنیا دَ
همیشګیری ځائے نه دے په دنیا کښې لږے ورځے ژوند دے او بیا نتاکید ل دی عدالت کول
دَ انسان دَ پاره مناسب نه دی دَ ادم په واقعه کښې دا مسائل دی چه دَ قصے نه غرض دی .مونږ
دَ شریعت دَ مسئلو په ځائے دَ تخلیق او دَ تکوین او دَ تاریخ په هغه خبرو کښې ګرفتار شو چه نه تر
څه فائده وی او نه سر ته رسیږی شی . دَ قرآن شریف ټولے تاریخی واقعے په دے نظر کتل

پکار دی ؛

فَتَلَقّٰٓی اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ کَلِمٰتٍ فَتَابَ عَلَیْهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِیْمُ ۝

پس زده کړے آدم ؑ د رب خپله نه یو څو کلمے پس قبول کړه خدای پاک توبه دده بیشکه هغه د ډیر بخښو توبه قبلونکے او مهربان دے

ادم علیه السلام ته د دعا خودنه

کله کله چه نوکر په خپله خطائی شرمنده شی. حاری غریب یے اوسنی لاس جوړه کوی. سنه راکوی کی مالک نه مخامخ ناسته وی ویره په غالبه وی د خولے نه څه او خکے نشی حبه ئے نه چلیکی دا ورسره خیال وی چه یو گناه خو م کړے ده هسے نه په معافی غوښتو کښ دلسے خبرے او کړم چه مالک را نه نور هم زیات خفه شی په دے حالت کښ مالک ترس اوکی او تپوس تر اوکی چه څه غوارے وا یه کنه ؟ چه دے بیا د ډیر خفگان څه و یلے نشی نو مالک ورته وائی چه خه ده وعده اوکړه چه بیا خو به داسے نه کوے نو نوکر زر ورشی او هم دغه الفاظ اروائی چه بیا به نه کوم مالک ور نه وائی ما معاف کړے بیا داسے مه کوه د غسے ادم ؑ خلاف امید د خدای تعالیٰ د طرف نه داسے خطا وارشه چه یا خو په ملائکو باندے افضل او د ملائکو د ادب حقدار وو او یا دے خدای پاک د جنت نه اوباسی. ادم علیه السلام جاری. واقعه رسی د ه چل نه ورځی چه اخر خدای پاک به را نه څرنګ راضی کیږی زه څو خوار شوم بیا ے جرا او بے ارامی کښ خدای پاک رحم کوی او هغه نه د معافی غوښتو کلمے خی چه خه ده اقرار او کړی چه مونږ په ځان ظلم اوکړو خدایه مونږ معاف کړے"

'ادم علیه السلام دا کلمے اوویلے او د خدایؑ د طرف نه معافی اوشوه د خدای پاک خوا مخواه چالره د خپل در نه شړل غرض نه وی او نه د چا په گناه کار پاتے کیدو باندے خدائے پاک رضا دے خدائے صرف د گناه نه پس داغوارې چه آیا دے خپیمانه کیږی که نه - که بنده

خپیما نتیا اوکړی نو د خدای پاک رحمت په جوش کښ راشی او په مبالغ سره رحم اوکی گناه
معاف کړی په دے واقعه کښ دا نصیحت دے چه انسان د په هیڅ حالت غاوره کیږی نه او نه پدے
تبدیلیٔ کی بدن باندے انبار کوی څومره په شان شوکت سره د آدم علیه السلام د پیدائش
خبر ملائکو ته ورکیدے شی د خلافت په تخت کینول د پیدائش غرض بیانیږی ملائکے حیرانگی
آخرکار په علمی او عملی طریقے سره آدم علیه السلام افضل ثابتیگی او د هغه تعظیم په لسو شلو ملائکو
سره نه بلکه بے شماره یا په ډیر زیاتو ملائکو سره د ده تعظیم کیږی او بیا په جنت کښ سره
د خپلے ښځے دے او سیږی خو دغه آدم دے چه څه خاص ونې ته نیږ نه وو چه په ځان انکولا سره
کیږی کړیوان شلوی د معافی چل نه ورزی تا سوانداز ه اولگوی چه د ملائکو او پیریانو
او خاص کر د شیطان به په دے حالت کښ څه څه خیالات په زړه کښ تیریدل - بیا
هغه ته معافی کیږی مهربان خدای ورته د معافی طریقه ښکاره کوی او زمکے ته رازی څوک
شته چه خپل د آرام او اسائش د ښکلی او عبادت د حکومت او خلافت په زیور آراسته وی
خو چه د دے د زوال نه هم اُیریگی او د شیطان هغه وسوسے چه په هر حالت کښ د هر حالت
مناسب د خلقو په زړو نو کښ غورزیږی خپل ځان له دینه بچ کړی او که چرے په وسوسو
کښ گرفتار شی نو چه د ربنا ظلمنا انفسنا الخ وظیفه زده کړی او په ډیرے عاجزی سره
د خدای نه معافی اوغواړی -

قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِیْعًا فَاِمَّا یَاْتِیَنَّكُمْ مِّنِّیْ هُدًی فَمَنْ

او وے ویلو ورته چه کوز شئ تا سو د دے جنت نه ټول | پس که راغی تا سو ته زما د طرف نه هدایت | نو چا | چه

تَبِعَ هُدَایَ فَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ۝ وَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا

د هدایت تابعداری اوکړه نو نه به ډیره په دوی باندے او نه به دوی غم وی | او څوک چه انکار اوکړی

ع ۴ ۲ ۴

وَكَذَّبُوا بِاٰيٰتِنَا اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ هُمْ فِيهَا خٰلِدُوْنَ ۝

او څوئې چې دروغجنې کړے۔ دوی به د دوزخ والے دی او همیشه به په عذاب کښې وی

د لغزش نه پس د آدم علیه السلام د توبے د قبلیدو مطلب خو دا دے چه بیا په جنت کښې اوسیدو ارتکی او د زمکے د اوسیدو نه خلاص شی لیکن دلته دوباره د اِهبطوا حکم او شه چه توبه پرقبوله ده خو بیا به جنت ته نه ځی بلکه ته او ستا ټول هغه اولاد چه پیدا کیدونکے دے هغه دے زمکے ته لار شی او هغوی دے ستا د دے واقعے نه اندازه اولګوی چه که آدمؑ د شیطان په وسوسه کښې څه قدرے خوراغو ډیوازے په عقل چه په هر انسان کښې پروت دے د شیطان د وسوسو نه بچ نه شه نو د غسے د هر بنی آدم د حفاظت د پاره به یوه باقاعده هدایت نامه د هادیانو پیغمبرانو په ذریعه دنیا ته د ضرورت په وخت کښې رالیږلے شی د دنیا خلق به په هره زمانه کښې دوه قسمه وی یوه ډله به په هر کار کښې د هدایت په رڼا کښې تله کوی دغه خلق به په دنیا او آخرت کښې خوشاله وی او بله ډله داسے وی چه د هدایت پابندی به ورته ګران وی په خپل عیش کښې اوسیدل به ځان له کافی ګڼړی د هدایت نامے په احکامو به نه ځی بلکه په هغے پورے به ټوقے کوی نو داسے خلق به په دنیا کښې هم خوار او ذلیل وی او دوی به د پس مرګ نه چوند د پاره داسے اور د ځان د پاره پیدا کړی چه همیشه به پکښې سوزیږی.

خدای پاک څومره په خوبۍ سره د سورت د اول نه تر دے پورے دا خبرے بیان کړے (۱) قرآن شریف بے شکه د خدای کتاب دے. د مومن، کافر او منافق تعریفونه په مثالونو سره واضح شو ازلی نیکی او بدبختی ذکر شوه په خپلو عامو احسانانو کښې د انسان نیر شوی او د انوئی حالات بیان شو د آسمانونو او د زمکو او د نور مخلوق د

پیدائش فائدہ او خودے شوے د حضرت آدمؑ تاریخ د هغه د دشمن قصه د فرمان برداری
او نافرمانئ نتیجے د گناه نه پس توبه قبلیدل ترمره پورے عمل کی سره بیان شوا و د پیغمبرانو
د راتلو ضرورت او خودے شه د پیغمبرانو د راتلو ضرورت او خودے شه د پیغمبرانو په
تابعدارانو او نافرمانو کښی فرق ښکاره شه۔

یٰبَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ اذْکُرُوْا نِعْمَتِیَ الَّتِیْٓ اَنْعَمْتُ عَلَیْکُمْ

اے بنی اسرائیلو یاد کری حُما هغه نعمت چه ما پیرزو کړیدے پتاسو

وَاَوْفُوْا بِعَهْدِیْٓ اُوْفِ بِعَهْدِکُمْ وَاِیَّایَ فَارْهَبُوْنِ ۝

او پوره کړئ وعده حُما پوره به کړم وعده ستاسو او خاص حُمانه اوویریږی

وَاٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَکُمْ وَلَا تَکُوْنُوْٓا اَوَّلَ

او په هغه کتاب ایمان راوړی چه نازل کړیدے ما او ریښتنی کړی هغه کلام لره چه تاسو سره دے تاسو اول په بانده

کَافِرٍ بِهٖ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰیٰتِیْ ثَمَنًا قَلِیْلًا وَّاِیَّایَ فَاتَّقُوْنِ ۝

مه کافران کیږئ او حُما په آیتونو بانده لږ قیمت مه اخلئ او خاص حُمانه ایریږئ

تراوسه د احسانا تو داسے ذکر وو چه په هغه کښی هیڅ قسم خصوصیت نه وو اوس د خاص
نعمت ذکر شروع شه دا ذکر به تر ډیره پورے وی۔ په مشرکو عربو کښی خو اهل علم
نه وو البته په اهل کتابو کښی عالمان او لیکونکی موجود وو او په دی کښی د بنی اسرائیلو
ډیر والے وو۔ په دے وجه بنی اسرائیلو ته هغه نعمتونه بیانیګی کوم چه خاص په
دوی شوی وو۔ د دوی لوئی په حسب نسب، په سرداری پیری وغیره بانده په خلقو
کښی مشهوره وه۔ پدے ذکر کښی دا مطلب دے چه که دوی او ش میږی او ایمان
راوړی د دوی په ایمان راوړو سره به په عوامو هم اثر پریوتے شه په دے رکوع کښی

دلختو نو اجمالی ذکر دے مخکښې بیا یو یو بیان شو یدے لوی پارے د ختمیدو پورے به دا ذکر هم چلیگی ۔

اسرائیل د یعقوب علیه السلام لقبی نوم دے۔ بنی اسرائیلو په تورات کښې

د نبی د تابعدارئ وعده کرے وه د دے ذکر په وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيثَاقَ بَنِي

اِسْرَائِيلَ کښې به راشی او د خدای پاک هم ورسره وعده وه چه لَاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ

سَيِّاٰتِكُمْ، په فَاتَّقُونِ کښې دے عالمانو، پیرانو، سردارانو ته دا الله نه ویرے

حکم ورکیدی چه تاسو د عام مومنانو مقتدین نه مه ویریگئ ۔ او دا خیال مه کوئ چه کم

مونږ مسلمانان شو نو څوک نه به د خلقو اعتبار پورته شی او اوره ، نوری ، وظیفے،

شکرانے به بندی شی۔ اوفوا بعهدی د وفاداری اوله مرتبه داده چه الله یو اوسی

او حضرت صلی الله علیه وسلم اخری نبی او منئ. په دے سره به ستاسو عزت،

مال او جان محفوظ شی دویمه درجه یے داده چه د توحید په سمندر کښې داسے فنا

شیئ چه د ځان او جهان نه غافل شئ ۔ د دے په بدل کښې د خدای پاک وفاداری

داده چه همیشه ده له د ملاقات او رضا نعمت ورکی ۔

په وعده وفا کول دیرا هم شے دے ځکه په بعض احادیثو کښې داسے راغلی

من لا وعد له لا ایمان له په بنی اسرائیلو کښې د خلاف وعدگئ مرض دیر زیات وو

او بے وعدے سرے ئے د کار نه دے د وعدے نه خلاف کول د سړی بیترین نشان

ندے او خاص کر چه په چا د علمیت، مال دولت او سرداری بادشاهئ مهربانی شوی

وی د هغه د پاره نو په وعده کښې خلاف کول دیره د افسوس خبره ده ځکه چه د

خدای پاک سره فطرتی وعده ده چه مونږ به خدائی او د هغه پیغمبرانو منو هغوی

په حکمونو به عمل کوو. کوم خلق چه د خدای پاک او د رسول حکمونه مني هغه په وعده خلافي کښې دے کوم سړے چه د خدای سره وعده نه پوره کوي هغه به د انسان سره څه دوستي اوکي داسے بے وعدے خلق هیڅکله د دوستۍ او اعتبار قابل نه دي او د دوی په باره کښې هم ما سمعون مونږ وایو چه ونخلع ونترك من يفجرك

وایای فارهبون، د وعدے نه خلاف اکثر د خوف په وجه کیږي بعضے سړے هرګز په وعده کښې خلاف نه کوي د وعدے نه خلاف کول د مال، د نقصان او د بدنامۍ په وجه یا د تکلیف راتلو په وجه کیږي. خدای پاک بني اسرائیلو ته حکم کوي چه که په څه ویره د خدایؐ او رسولؐ سره وعده نه پوره کوي نو دا خبره نه ده ځکه چه د ویرے شان ځما دے بل څوک داسے ذات نشته چه هغه ځما نه لوئ دي، ویره ځما نه او ځما د عذاب نه اوکړئ او وعده پوره کړئ. په اول آیت کښې د وعدے یادداشت دے او په دے آیت کښې د وعید ذکر دے،

مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم، د دینه دا مطلب نه دے چه ګنے قرآن مجید د یهودو د ټولو عقیدو او د کتابونو تصدیق کوي بلکه قرآن د هغوی د مذهبي اصولو تصدیق کوي چه دوی دغه اصول د خپلو غلطو عقیدو سره ګډ وډ کړے دي. د قرآن شریف په وخت کښې د تورات یوه مجموعه موجوده وه چه په هغې کښې ځنې صحیح خبرے وے او اکثر غلط وے.

د لغتونو د ذکر ضرورت ځکه راغے چه بني اسرائیلو ته په غیر خانداني پیغمبر باندے ایمان راوړل ډیر ګران وو خاص کر ریاست او شان شوکت د پیغمبرؑ د حکم په منلو کښې مانع وو نو دوی ته لغتونه یاد کړے شو چه تاسو د غیر خانداني

پیغمبر سره کینه مکوئ او که د پیغمبری نعمت تراوسه د اسحق علیه السلام په اولاد کښ وو نو څه او شو که د اسمٰعیل علیه السلام په خاندان کښ حضرت محمد صلے الله علیه وسلم پیدا شه د نعمت د ذکر او د وعدے د وفا او د خدا ترسی نه مطلب دا وو چه په قرآن شریف ایمان راوړئ ورسره دا دے تاکید دی حکم هم او شو چه کور دے سره د علم او پوهے په دا سے عزت مند کتاب بانده کفر او نکړئ او مه کوئ چه د پیسو په خاطر قرآن پرے نږدی او چه تاسو ته د بل چا نه خوف او نه ګی د دینه معلومیږی چه د قرآن شریف نه د خلقو د زړو لوټے سببو نه دا دے دی د دے طرف ته هم چاله فکر لګارد دے چه یهود اسبابو قرآن شریف پرے نږدی و

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ۝

او مه ګډوئ حق د باطل سره او مه پټوئ حق او تاسو حق پیژنی

وَأَقِيمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوا مَعَ الرّٰكِعِينَ ۝

او ادا کوی مونځ او ورکړئ زکوٰة او عاجزی اوکړئ د عاجزی کونکو سره

د یهود یانو عالمانو دا قاعده وه چه کله به یے قصے او د نیوے عقیدے د ثابتولو د پاره د خپل طرف نه زیاتے کے کاوو او په حبکو نو غار لتولو کښ چه کوم اسمانی کتابو تلف شوی وو او حافظان هم وو نه نو د خپل طرف نه به ئے جوړول او څه نه به ئے د اسمانی کتاب ایتونه وے کله به ئے د اسمانی کتاب شرح کوله نو د شرح او د اصل کتاب په مینځ کښ به څه فرق نه وو. دا قول به اسمانی کتاب ګڼړلے شه او د حافظ د نه موجود ګئ په وجه پوهے کښ حبدای ناممکنه وه. د دینه علاوه د کاغذ او د لیکلو کے وو دا سے خاصه دینی کتب خانه نه وه چه په هغے کښ دینی کتابونه محفوظ

وے نه څه خاص علمي مجلس وو چه هغوی د اسماني کتابونو حفاظت کولے هـ یو کاهن او راهب ځان ځان له بیل علم خوشاله وو د یو بل سره د خپل کتاب د مقابلے څه انتظام نه وو هم د غه څه تر ننه پورے په عهد عتیق او جدید کښې بیا موندے شي او د غه وجه وه چه په اسماني کتابونو کښې کے زیاتے او د څه دنیاوی غرض د پاره د ځان نه څه ویل او لیکل ډیره آسانه خبره وه چنانچه د حضرت صلے الله علیه وسلم د پیدائش نه مخکښې په اسماني کتابونو کښې د خاتم النبیین ډیر صفتونه کول لیکن چه حضرت پیدا شه نبي شه او مدینې ته راغے هجرت او کړو نو یهودیانو د خاندانی اختلاف او دنیوی اغراضو په وجه هغه زیرے بدل کړه او عجیبه عجیبه تاویلونه ئے پکښې شروع کړه په دې وجه خدای پاک او وے چه وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ په دے منع کولو کښې دا غرض وو چه تاسو عالمان یئ که تاسو داسے او کړئ نو ستاسو په وجه به ډیر په زرګونو خلق ئے لارے شي بیا د بنه د پاکۍ او خدا ترسئ حکم کیږی چه مونځ او کړئ خو داسے مونځ چه لکه څرنګ حق د مانځه دے داسے مونځ چه په هغې کښې ظاهری باقاعدګی هم وی او ستاسو په زړه هم خاص اثر لری او بیا د خپل خدا ترسئ ثبوت داسے ورکئ چه د خپل مال نه څه حصه د خدای په لار کښې فقیرانو غریبانو له ورکئ او مونځ یوازے پخپله کور کښې مه کوئ بلکه په جمع مونځ کوئ۔

رکوع خو د مونځ یو جزء دے لیکن دا د مونځ لوئے جزء دے ځکه په رکوع سره قول مونځ مطلب دے،

زکوٰة، پاکۍ او ترقۍ ته وائي په زکوٰة ورکولو سره پاکی او ترقی په مال کښې پیدا کیږی د خدای سره په معامله کښې خلط ملط نه دے پکار حقیقت او شک شریعت او رسم ورواج اخلاص او ریاکاری، کرامت او مکاری ګډه ودہ کول نه دی پکار۔

اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ

ای حکم کوی تاسو خلقو ته په نیکی سره او هیر کړی مو دے ځان خپل او حال دا دے چه تاسو لولئ اسمانی کتاب

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ۝ وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا

ایا تاسو نه پوهیږئ او مدت او غواړئ په صبر او په مانځه سره او بیشکه چه دا مونځ گران دے خو نه دے گران

ربع ع ۷/۵ عَلَى الْخٰشِعِيْنَ۝ الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ۝

په عاجزی کوونکو باندے چه دا یقین کوی چه دوی به مخامخ کیږی د رب خپل سره او دوی به واپس خدای ته ورځی

داخیال کیدے شه چه شاید د بنی اسرائیل د خاتم النبیین صلے الله علیه وسلم د نبوت نه خبر نه دی ځکه دوی ایمان نه راوړی نو د دے په باره کښی حقیقت ښکاره کولے شی چه د یهودو عالمانو ته خه معلوم وه چه محمد صلے الله علیه وسلم خاتم النبیین دے او کومو خلقو چه ایمان راوړے وو نو هغوی ته به دے عالمانو وے چه خه ده مسلمانان او ستئ اسلام خه کار دے موږ خو د خه مجبورو په وجه اسلام نشو راوړے. نو د حضرت صلے الله علیه وسلم رسالت خه پته خبره نه وه -

د یهودو عالمانو ته خطاب کیږی چه تاسو په تورات کښی لوستی دی چه بل ته وعظ کول او بیچپله بیچپل وعظ عمل نه کول بده خبره ده نو تاسو سره د دے علم نه دلے داسے کوئ د دے دا مطلب نه دے چه کښے بے عمل عالم دے وعظ نه کوی عمل جدا فرض دے او وعظ جدا فرض دے خو د واعظ د پاره دیره د شرم خبره ده چه د دے شعر مصداق دی

شعر

واعظان کیں جلوه بر محراب و منبر میکنند ۝ چوں بخلوت میروند آں کار دیگر میکنند

دوی سخت د ایمان نه راوړو څې معقول عذر نه وو البته د ایمان نه راوړو د پاره د دوی
دوه بد خویونه مانع وو یو د مال محبت وو دوېم د عهدے او مرتبے شوق وو او د دے
دوارو محبتونو په وجه پردے کښې کینه هم راغله وه دوی پوهے پوهیده چه که مونږ د
محمدؐ رسالت او منو نو به بیا دا قدر او مرتبه وی - دوئ پوهے دېر خفه وو چه اسلام
روځ په روځ په ترقئ وو. د اسلام ترقی دوی خپله تباهی گڼله د دے بد خویونو د لرے
کولو د پاره خدای پاک دوئ ته علاج ښئی چه تاسو صبر او مونځ کول اختیار کړئ په
صبر سره به د لذت او شهوت کمے راشی او چه دا کمے شی نو د مال محبت به کم شی او به
مونځ کښې به هر قسم ذلت، عاجزی او فرمان برداری راشی نو د خپلو معتبرو او عزت والی
جوش به په مونځ سره کم شی. - په صبر کښې دومره گران والے نشته پوهے کښې حرف دوه
درے خبرے پریښودل رازی خو په مونځ کښې دیر کارونه پریښودے شی اول خو مونږ
زړه ازادی غواړی پابندی نه خوښوی او چه زړه ازادوی نو لاس ښپے هم د زړه تابعدار
وی په مونځ کښې به د زړه توجه خاص په پابندی سره خدای طرف ته وی خندا به نه وی
خبرے به نه وی څوړل سکل به نه وی، گرزیدل به نه وی، قول الله امونه قرکا فی وخته
پورے پنځه کڅ اره په قید کښې رازی دا د مونځ هغه گران والے دے دا مونځ په هغو
خلقو گران نه دے کوم چه خپل زړه قابو کی، په زړه کښې عاجزی راولی او عاجزی په
دے رازی چه زه به د خدای سره مخامخ کیږم او خدای به ځما سره حساب کتاب کوی
د پس مرگیزی ژوند هر قسم حالات په زړه کښې تیر کړی او د هغه په وجه خپل زړه د مستئ
ازادئ نه خلاص کړی بس پوهے طریقه بیا الله امونه خوږ زړه تابعدار هغوی کښې هم
سکون او باقاعدگی راشی او په مونځ کښې لطف او اطمینان پیدا شی او طول د عمل مونږ

خیالي لویږي په خاطر و کښې لګړې شي هر قسم د رسول تابعداري او د هغه غلامي ورته بهترين شي ښکاره شي دا د حب مال او حب جاه علاج وو چه بيان شه،

دا د اسلام ډيره لويه رواداري ده چه يهوديان سره د دې بد اخلاقو په دا سې الفاظو سره مخاطب کيږي لکه چه د دوئ د پرخه خلق وي دري نه اهل کتاب وېلې عالمان ويل، وعظ کونکي ښکاره کول د دوئ هغه صفتونه دي چه د اسلام د رواداري په وجه ښکاره شو. د اسلام نه مخکښې دا قوتګي د خپلو بد عملو په وجه د پوهيږو نکو خلقو په مخکښې هيڅ د قدر خلق نه وو دا د قرآن يو خاص طرز کلام دے په دے سره يو ډير نا کاره سړے په اسلام کښې راتلي شي اسلام يوازې د دوئ سره رواداري نه ده کړې بلکه بت پرستو له هم با قاعده انساني حقوق ورکړے شويدي او دوئ د خپلې ګمراهئ په وجه حقير يا ذليل نه دي ګڼړلي شوي.

يٰبَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ ٱذۡكُرُواْ نِعۡمَتِيَ ٱلَّتِيٓ أَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ وَأَنِّي فَضَّلۡتُكُمۡ

اے بني اسرائيلو تاسو خما هغه نعمت يادکړئ کوم چه ما پتاسو باندې زړکړے وو او دا خبره چه ما تاسو لوی کړی

عَلَى ٱلۡعَٰلَمِينَ ۝

په عالمو باندې

په دې سره مطلب د دوئ د هغه پلارا نو دے کوم چه د موسیٰ عليه السلام او د هغه نه پس تر هغه زمانې پورې ووچه دوی لا پدين کښې تبديلي نه وه کړې انعام دا وو چه خداي پاك دوی له علم، ايمان او نيك عمل ورکړه او په دوئ کښې پيغمبران او بادشاهان منصفان وو.

العٰلمين، د دينه مطلب په ټولو خلقو فضيلت نه دے بلکه د هغې زمانې په خلقو

کښې بني اسرائيل غوره وو هم دېته په دے ايت کښې اشاره ده. اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ
اَنْبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا وَّاٰتٰكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ

وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا

او ويرېږئ تاسو د هغې ورځې نه چه هيڅ څوك به د بل چا د پاره مطالبه نشي كولے او نه به بل چا د پاره سفارش (يعنې اجازت)

شَفَاعَةٌ وَّلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝

قبليږي او نه به د چا د طرف نه بدل قبليږي او نه به د هغې خلقو طرف داري چيږي.

مطلب دا دے چه كه تاسو د خپلے سركشۍ او تعصب نه بېرته رانغلئ او د خداى پاك د نعمتونو
حق مو ادا نه كه او د شريعت خلاف، او بت پرستي مو اوكړه او په دے بې اخلاقو تاسو خپل
سلطنت او پيغمبري په خاورو كښې ككړه كړه نو تاسو خو پوهېږئ چه يوه ورځ داسے
راتلونكې ده چه په هغې كښې به مړك وي او بيا به د قيامت په ورځ حساب كتاب وي كه د
عذاب حكم اوشو نو د خلاصۍ به هيڅ لار نه وي او هيڅ څوك به د چا ذمه وارکيدے نشي
هيڅ څوك به د خپل ذاتي رعب په وجه د چا سفارش نشي كولے. مال دولت به د چا د
جرم بدل نشي كيدے او څوك به د خداى تعالىٰ مقابله نشي كولے. پس چه د عذاب نه
خلاصى غواړئ نو د دے عذاب نه او ويرېږئ او د شريعت محمدى تابع شئ.

وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ

او چه خلاصې دركړه ما تاسو له د فرعونيانو نه چه سكول به ئے تاسو باندے سخت عذابونه

يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ۭ وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَاۗءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ۝

حلالول ستاسو ځامن او ژوندي به پرېښودے ستاسو ښځے او په دے كښې يو امتحان وو ستاسو د پروردګار لوى

اسرائيلي واقعات په قرآن شريف كښې داسے نه بيانيږي لكه چه د تاريخ په كتابونو كښې په ترتيب

لیکلے کیدے شی په قران شریف کښ د تاریخ بیان مطلب نه وی بلکه څومره واقعه چه د
هغې نه د ترغیب یا د ویرے غرض حاصلیږی هغه بیانیدے شی - د مصر بادشاه چه د
هغې د هر یو قاضی نوم فرعون وو د موسیٰ علیه السلام د پیدائیش په وخت کښ د یوے خاص
ویرے په وجه حکم کړے وو، چه د بنی اسرائیلو ځامن وژنئ او ښځے ئے د خدمت د پاره
پرېږدئ ویره دا وه چه په بنی اسرائیلو کښ به یو هلک پیدا کیږی او هغه به د فرعون
بادشاهی تباه کوی دا ډیر لوئے مصیبت وو خو خدای رحم اوکړ او موسیٰ پیدا شه د
فرعون په کور کښ لوے شه او د فرعون د هلاکت سبب اوګرزیده

د مصر اصلی اوسیدونکی فرعونیان قبطیان وو او بنی اسرائیل د یوسف علیه السلام
په ذریعه مصر ته راغلی وو او اصلی وطن شام وو چه د مصر نه شمال طرف ته د سلو لیښت
روځو په فاصله وو د اصلی وطن او عارضی وطن خیال د فرعونیانو په زړه کښ وو، فرعونیانو
د اصلی مالک والی او بادشاهئ په وجه د مسافر بنی اسرائیلو د پاره اول اول خوار ذلیلو
ذلیلو کارونو ته امقرر کړے وه سرو به ئے خپل لوئے، کاشتکاری کوله او خزو به سرځ
اوښتے اوه لے، د بل ښستیانه د هغه زمانے فرعون چه نوم ولید بن مصعب وو یو خوب
اولید، چه د بیت المقدس د طرف نه یو اور راغے او هغه ټول مصر او سوزو، او یو
اصلی د مصر اوسیدونکے قبطی ئے سټی کړه کاهنانو بالاتفاق د دے خوب دا جواب اوکړ
چه دا به په بنی اسرائیلو کښ څوک هلک پیدا شی او ستا د بادشاهئ د زوال سبب به
جوړشی په دے وجه د هغه کالو د قتل د پاره خزے به کورونو کښ مقرر شوے او بے ګناه
مرکو نه شروع شو خو چه بیانس کم سل زره بے ګناه بچی قتل شو نو د قبطیانو سرداران
او وے چه که دا مرلے او قتل دا سے جاری وی نو دا ذلیل کارونه به مونږ له څوک کوی

په دې وجه دا حکم دی یو کال قتل کولو او د یو کال نه قتل کولو په رنګ کښې بدل شه موسیٰ علیه السلام د مرګ نه په کال پیدا شه خو خدائے پاک د فرعون په کور کښې دے لوئے کړه، تا سو د وطن د بت د محبت ظلمونه اولیدل دا وطن پرستی یا بت پرستی دور د فرعونیانو د کور مسئله ده، خو نن د هندوستان هندوان خپل ځان د هندوستان اصلی او سپیڅلی منی او مسلمانان د بنی اسرائیلو لېښان مسافر ګڼړی او هم په هغه رنګ سلوک چه کوم فرعونیانو د بنی اسرائیلو سره کړے وو د مسلمانانو سره دوی کوی او د مرګ او قتل سامان جوړوی تا سو د هندوستان د کارونو، سوداګیرو، کارخانو، زمیندارو او تعلیمی اصلاحی جماعتونو، ملازمتونو په تفصیل سره مطالعه او کړئ نو تا سو به پوهه شئ چه د هندوستان فرعونیان د بنی اسرائیلو غوندے مسلمانانو سره تر او سه خرڅ پاتے شویدی او مخکښې د دېنه ځومره ویره یا امید کیدے شی، د هلکانو د قتل یوه لویه وجه دا هم وه چه هسے نه بنی اسرائیل په اکثریت کښې راشی، مردم شماری به دېره شی او چرته د مصر بادشاهان نشی د اکثریت او اقلیت مسئله هم تا سو اولیده چه فرعونی اکثریت اقلیت څرنګ فنا کوی۔

د موسیٰ علیه السلام د بنی اسرائیلو د غلامئ نه د خلاصولو وا قعه په سیاسی تقریرونو کښې بیا نیږی دا خو صحیح ده چه هغه غلامان د غلامئ نه خلاص کړه خو چه دا غلامان څوک وو او د چا غلامان وو. د هندوستان حالت او د مصر حالت که موافقت خوری نو دا سے چه موسیٰ علیه السلام بنی اسرائیل لره چه مسافر او میلمانه وو د قبطیانو فرعونیانو نه چه د مصر اصلی مالکان وو، په تعداد کښې ډیر وو حکومت، عزت، دولت لاره، د غلامئ نه خلاص کړه. او د وطنیت اکثریت بت په دریاب کښې لاهو کړه. موسیٰ علیه السلام چه قبطی په اسرائیلی ظلم کوئے

د هندوستان او مصر حالت

اولیدہ نو صبر او نکړہ او قبطی یې د ظلم په وجه په سوګ واهه دا واقعه د پیغمبرۍ نه مخکښی وه او د پیغمبرۍ واقعات به ځائے په ځائے بیانیږی. د حضرت موسیٰ علیہ السلام واقعات په شل سورتونو کښی بیان شویدی بعض د تورات واقعات قرآن نه دی بیان کړی چه په هغې کښی عبرت او نصیحت نه وو۔

په هندوستان کښی د اکثریت د ظلم لوئے ښکار ه او بے مثله ظلم دا دے چه د موجوده اکثریت نه مخکښی د هندوستان اوسیدونکی د اکثریت په طاقت ن ښکیان، چوریان شاخیلان او خوارزاردی د هغوی تعداد تقریباً لس کروړه دے. مذهب د هندوهسے دے د وطن په اصلی او عارضی والی کښی د وطن اصلی اوسیدونکی دوی یے خو د اکثریت د لاسه خوار وزاردی او هم دغه ظلم په لس کروړه مسلمانانو هم کیدو نکے دے که مسلمان خپل ځان او نه پیژنی

وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ۝

او یاد کړئ (چه تاسو د مصر نه اوتی) نو مونږ ستاسو د خلاصی د پاره د سمندر او به داسے جدا کړے چه تاسو لاری او فرعونیان مو ډوب کړل او تاسو ورته کتل

خدای پاک بنی اسرائیل د فرعونیانو نه په دے طریقه خلاص کړه چه کله فرعونیان د دوی د ورانیو په شپه په څه غم اخته شو د هر کور کره غم پیدا شوے وو دوی روان شو صباته چه فرعونیان خبر شو نو په دوی پسے روان شو. موسیٰ علیہ السلام چه د قلزم دریاب ته اورسیده نو هغه ناپایا وو روستو د فرعونیانو نوځ هم ښکاره شه په بنی اسرائیلو ویره راغله او د موسیٰ علیہ السلام سره ئے جنګ شروع کړه چه څو نږ را وېستل څو نږ د مرګ د پاره وو، مرګ خو په مخکښی خو وو ددے سفر نه څه مطلب وو که دے نا امیدی په حالت کښی خدای پاک دا احسان اوکه چه دوئ ته د موسیٰ علیہ السلام په معجزانه طاقت سره دا دریاب دولس لارے شه او دوئ په روان شو چه غاړے ته اورسیده نو فرعونیان هم ورپسے په دغه لار روان

شو څو چه مینځ ته اور سیدو نو دریاب په را خلاص شه او دوئ په کښې ډوب شو. دا دے
احسان اندازه هغه څوک لګولے شی چه څوک چرته په جنګ کښې راګیر شی او د تیښتے لورے پاتے نه
شی په داسے وخت کښې یو خس مدت د عمر پاره نه هیریږی او د دشمنانو نه خلاصے او نه صرف
خلاصے بلکه د دشمنانو د مرګ سبب جوړیدل داسے احسان دے چه دا د هیریدو نه وو
خو یهودیان ډیر احسان فراموش وو چه دومره لوی احسان دوی هیر کړه. په دے وجه دوی
ته خکاره کولے شی.

وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰۤى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهٖ

او (دا یاد کی) چه مونږ د موسیٰ سره د سلوېښتو شپو وعده او کړه نو تاسو د سخی عبادت شروع کړه

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ۝ ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ۝

او تاسو ظالمان یئ. خو بیا مونږ لتاسو نه معاف او کړه (او د دے د ښانه موبخ کړئ) د دے د پاره چه تاسو د شکر ادا کړی

وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ۝

(او دا هم یاد کړی) چه مونږ موسیٰ ته توران او د حق باطل د جدائیٔ طاقت ورکه چه تاسو د نیک بختیٔ لار پرانزه

دا د خدای معلوم انعام دے چه د دریائے قلزم د پورے کیدو نه پس ظاهر شوی وو خدای تعالیٰ
موسیٰ کوه طور ته را او غوښته او سلوېښت شپے هلته وو. دلته بنی اسرائیلو خان له د سرو نه
سخے جوړکه او د هغه عبادت شروع که د دے په سزا کښې کچرے دوی ټول هلاک شوی وے
نو څه لویه خبره نه وه مګر خدای تعالیٰ بیا هم دوی معاف کړه. دا د خدای پاک څومره
لوی انعام دے.

سلوېښت شپے د خلقو نه کناره کیدل د روح د صفایئ سبب دے په اول کښې د حضرت
موسیٰ علیه السلام سره د دیرش شپو وعده وه خو بیا په لس شپے زیاتے شوے په دے

لسو شپو زیاتیږو په بني اسرائیلو کښې د موسیٰ علیه السلام د مرګ خبره مشهوره شوه او د سامری زرګو په مکراو په مصر کښې د فرعونیانو سره په صحبت دی. د جسمانی خدائی عبادت شوق لرلی وو په مصر کښې خلقو د غوا غوئی او پیشو عبادت کاوو چه موسیٰ علیه السلام سره د تورات نه بیرته راغی او د دوی د سخی د عبادت قصه ئې واوریده نو ډیر خفه شه او د خپل ورور هارون علیه السلام نه چه د دوی د حفاظت د پاره پاتې شوے وو، هم خفه شه چه تا دوئی ولے نه منع کول خفه ور نه عذر او کړه چه که ما منع کولے نو زه دوئی د خپلو نو موسیٰ علیه السلام خفه یچه مات که په دریاب لا هو که او د دوی د نا فرمانئ تو به دا مقرره شوه چه خلق دے یو بل او جنی بیا موسیٰ علیه السلام په جرا سره د خدائی تعالیٰ نه د معافئ درخواست او که نو خدائی پاک دا حکم معاف که.

د موسیٰ علیه السلام د پیغمبرۍ مطلب

تا سوا ولیده چه موسیٰ علیه السلام بني اسرائیلو ته د قبطیانو نه خلاصول غوارې او په غلامئ کښې او سیدلے خلق د غلامئ اخلاق نه پرېږدی او ځائے په ځائے د اکثریت او د حاکم سره د تعلق ثبوت ورکوی د موسیٰ علیه السلام د پیغمبرۍ یواځې دا مطلب نه دے چه صرف د بني اسرائیلو نه د قبطیانو د غلامئ نه خلاص کی دا د یو معمولی لیډر مطلب هم کیدے شی کرزید ے نو د پیغمبر د جوند مطلب به غرنك یوازے د جسمونو آزادی او د خوراک سکاک یاد پوسے لیښتے کیدے مورد والے او کرزی او که صرف دا مطلب وے نو بیا د قلزم نه د پورېیو تو نه پس چه د غلامئ نه قوم خلاص شه بیا د سخی په عبادت د موسیٰ علیه السلام د لوئے خفګان او دا قوم چه د آزادی په نعمت سرفراز شه، بیا د سخی په عبادت د کورنئ په قتل عذا بول دا خبره ښکاره کوی چه د بني اسرائیلو د غلامئ نه خلاصول ځان له یوازے قابل تعریف

ئیز نه وو بلکه په دے کښې دا غرض وو چه دوئ د غلامئ نه خلاص شي او د خدای پاک عبادت او د هغه د احکامو منلو ته طيار شي. نن روح خوښ لیډران چه د آزادئ او د داسے آزادئ خواهشمند دي چه د ملك دننه او باراې نظام حکومت واخلو دېس دغه قدرے کار نه جهاد او غزا واي هغه د پوی شي چه دا به هله جهاد وي چه د قوم د آزادیو نه مطلب دا وي چه دوئ د خدای پاك د احکامو منلو ته طيار شي او په ځاے د انسان پرستئ خدای پرستي او د يو باطل نظام حکومت په ځاے خدائی قانون په ځان نافذ کي. او که دا غرض نه وي بلکه د سپين رنګي بل وطني قوم لرے کول مطلب وي او هم دغه باطل قانون د هندوستاني په ذریعه جاري کول وي نو دا قدرے کار په جسماني دنیا کښې د قومونو په نظر کښې به خه وي خو په روحاني او مذهبي وطن کښې د دے جنس څه قیمت نشته.

وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ

او په هغه وخت کښې چه موسیٰ خپل قوم ته او وے چه اے قوم بے شکه تاسو ظلم او کړه په خالو نو خپلو د سخي په خدای

الْعِجْلَ فَتُوْبُوْٓا اِلٰى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ

منلو سره پس متوجه شئ خالق خپل ته او او وژنئ بعض بعض لره دا سزا عزوه (ذریعه د ګناه د معافی ده) ده

عِنْدَ بَارِئِكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ○

په نزد د خالق ستاسو بیا توبه قبول کړه خدای ستاسو بے شکه هغه توبه قبلونکے او مهربان دے.

د سخي پرستئ سزا په موسوی شریعت کښې قتل وو خو نن په شریعت کښې هم که د نکاح شوی سړي او ښځے زنا په شهادت ثابته شي نو دا ګناه په توبه نه معاف کیږي بلکه د دے سزا رجم (په کانړو ویشتل مرګ) دے.

په دے کښې دا نکته ده چه په شرك کولو سره دے خلقو خپل ابدي ژوند تباه که نو د دے

کفارہ دا دہ چہ دا دنیوی ژوند دے د هغه ابدی ژوند د پارہ فناشی د دینه معلومه شوه چه قیمتی خیز او د قدر قابل ژوند، ابدی او لیس مرکیزے ژوند دے د هغه ابدی ژوند دے کہ دا په کفر، په شرک، په نظام باطل چلولو یا د غسے په نور د رستو اشنایو ځوک خراب کی نو د دے سزا یا د دے گناه د معاف کیدو علاج یوازے په دے کیدے شی چه دا د غو خو وجود دے ژرک شی خو ابدی ژوند یے په لاس راشی۔

ځوښ بد قسمته د دین نه بے خبره خلق دا وائی چه د اخرت ژوند نه شته او نه موږ سره د دے غم دے خو د دنیا ژوند سم کئ۔ دا د مسلمان شان نه دے۔ مسلمان په نیوی ژوند د اُخروی ژوند نه خه نه گنړی۔

وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْكُمُ

او په هغه وخت کښ چه او وې تاسو چه اے موسیٰ هرگز به ایمان رانه وړو سوږ تر هغه پورے چه او نه وینو موږ خدای په ښکاره ښایسی او نیوه تاسو له

الصّٰعِقَةُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ○ ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ○

بجلی او تاسو ورته کتل بیا موږ تاسو لیس د مرگ نه ژوندی کړی د دے د پارہ چه تاسو شکر ادا کړی

چه د سخی د عبادت د سزا او د توبے نه فارغ شوه نو بیا موسیٰ علیه السلام او یا کسان کوه طور ته بوتلل موسیٰ چه د خپل رب سره خبرے کولے نو دوی او ریدے او دوی نه د موسیٰ علیه السلام څخه زوند سپین ښکاریدہ دوی او وے چه موږ یوازے په خبرو او ریدو خبر نه کوو بلکه موږ خدای پاک لیدل غواړو نو په دوئی د دے گستاخئ په وجه بجلی را او غورزیدہ او دوی مړه شو موسیٰ علیه السلام د دوی په بارہ کښ دعا او کړه او دوئی بیا ژوندی شو۔

غلام ذهنیت

غلام قوم د غلامئ په وجه خپل ځان خپله درجه او د کولو نه کولو خبرے نه پیژنی ځوک چه د ځان نه زیاتے خبرے کوی هغوئ همیشه په سزا کښ گرفتار وی۔ اُکی سری نه هغو نه شے دوئ

بنکاری غلام قوم کښې د ماد یا تو د ظاهری جسمانی خالُشت شان شوکت مشرئ او دولت ډیر شوق وی۔ دوی په مصر کښې د سرو سپینو عنت ښائشته تبان لیدلی وو او پیاسے لیدو سره د دوئ عقیده گرزیدلے وه چه خدای که کیدے شی نو هم دغسے یو ولی جسم بدلوی او ځرنګ چه مونږ هغه بتان لیدلی وو دغه د موسیٰ خدای به هم مونږ لیدلے شو نو دا سوال د دوئ د مخکنی جوند، د کافرانو د صحبت او نا پوهئ یو ظاهری ثبوت وو ځرنګ چه خدای پاک د جسمانی غلامئ نه د موسیٰ علیه السلام په ذریعه خلاص کړه دغسے خدای پاک دوی نه د خبرو، سوال کولو طریقه بنکاره کوی۔ او د دوی د زړه نه ماده پرستی ظاهر بینی او نادانی لرے کوی مرض ډیر زوړ وو په دی وجه سزا ورله سخت ورکیږی اول سزا د سنی د عبادت او کوری او دولته سزا په مجلئ سره او کوری د دے دا مطلب دے چه د غلامئ نه خو خلاص شوے او س خپل زړه او دماغ د موسیٰ علیه السلام په تعلیم صفا کړئ د غلامئ زاړه خویونه پریکدی چه پس د مرګ نه جوندی شئ

وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى كُلُوْا مِنْ

او سورے اوکړو مونږ پتا سو د وریځے او ورکړو مونږ تاسو له ترنجبین او مرزان (هیسے) خو رئ خوږی تاسو د

طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَمَا ظَلَمُوْنَا وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ۝

پاکو هغے څیزونو نه چه روزی درکړه مونږ تاسو له او ظلم او نه کړ تاسو په مونږ بلکه وئ تاسو پخپلو ځان ظلم کرنکی ۵۰

بنی اسرائیل په اصل کښې د شام او سیدونکی وو د شام مذهبی حالات داسے وو چه په هغے کښې د پیغمبرانو تعلیم په بنی اسرائیلو د اثر کیدو ډیر امکانات وو۔ مصر کښې بادشاه او اکثر رعایا او د وطن اصلی او سیدونکی تول بُت پرست وو پداسے حالات کښې د بنی اسرائیلو د دی سره پو ځائے او سیدو کښې د اصلاح امکان کم وو۔ ځکه موسیٰ علیه

السلام بني اسرائیل د مصر نه راروان کړه چه یو د کافرانو د غلامۍ نه خلاص شي او بل چه
د پیغمبرانو په پیدا شوے زړا کښې خپل مذهبي حالت سم کي. موسیٰ علیه السلام دوئ شام
طرف ته روان کړه. په شام کښې عمالقه قوم چه ډیر زور اور وو. په دغه وخت کښې د شام بادشاهان
وو. بني اسرائیلو ته حکم اوشه چه تاسو به د عمالقه و سره جهاد کوی او دا د پیغمبرانو مقدس
ملک به د دے کافرانو نه خلاصوئ. بني اسرائیل چه د شام حدودو ته اورسیده او د عمالقه و
د زور پته ورته اولګیده نو د جهاد نه ئے صفا انکار اوکړه. د جهاد نه انکار څه وړه خبره نه
وه ځکه چه بے د جهاد نه د یو قوم جوند ے پاتے کیدل او د چا نه ملک اخستل ناممکن دی. په
دی وجه بني اسرائیل د جهاد نه د انکار په سزا کښې په یو میدان کښې چه هغه "تیه" نوم
میدان وو سلو بخت کاله سرګردان ګرزیدل کور ته هم لنشو رسیدے او دوی په دے
میدان کښې آباد ے هم لنشو کولے چه دوئ ډیر تنګ شو نو بیائے زاری اوکړه چه ا
خدایه! د دے غرمو نه او د تپ نه مُ خلاص کړے نو مهربان خدای سره د دے چه دوئ
د جهاد غوندے فرض نه انکار کړے وو او د کافر هیانو هسے داشنے عقیده لرونکي وو. یا
د فاد یا نیانو هسے د جهاد نه منکر وو. په دوي دا رحم اوکه چه یوه سپینه وریځ په دوی
سورے کړه او هلته د خوراک سکاک هم څه امکان نه وو خدای ورله د غیبو نه دوه
څیزونه پیدا کړه چه یو "مَنْ" وو هر سحر به په ونو وریده. خوګ د ترنجبین هسے وو
او دویم "سلْوٰی" د مرزانو هسے مرغۍ وے چه د دوی په خوا کښې به ګرزیدے دوئ
به نیولے او په تنجو بانده به ئے ورتړلے. دوی ته دا حکم وو چه د خرس نه زیاتی مه
جمع کوی. خو دوی اوګ ستړګی د غلامۍ لوګے د هلی په خدای پاک بے اعتباره وُو دوئ جمع
کول شروع کړه په دی وجه هغه سخا شوا د دے الهي حکم د خلاف په وجه په دوی دا

رزق بند شه دے قدرے قصه نه دا معلوم شوه چه مسلمانانو له د اقلیت او کمزوری
په حالت کښې د اکثریت سره په اشتراک کښې خپل مذهب او اخلاق محفوظ ساتل
ډیر ګران دی ځکه دا چه هغه یو قوم د بل قوم نه ملک او وطن بے د جهاد نه اخستے نه شی
او جهاد د پیغمبرانو یو مشترک مسئله شوے اصول دے۔ دا نه هم معلوم شوه چه د روزئ
او د دنیوی هر یو کار د پاره که څوک په نظر کښې څه سببونه شته لو دے دا مطلب نه دے
چه کیني په غیبو کښې د دے لوړ سببونه نشته ځکه چه د خدای علم بحیثه دے د ټولو د
اشیاء اسباب هم بے حده دی۔ څه مونږ ته معلوم وی او ډیر مونږ ته معلوم نه وی نافرمان
بنده په نافرمانئ کښې خپل نقصان کوی د خدای څوک نقصان نه شی کولے

وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا

او په هغه وخت کښې چه حکم او کړو مونږ ه چه داخل شئ دې کلي ته بیا خورئ تاسو له دینه هر ځائے چه غواړئ ډیر

وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطٰيٰكُمْ

او داخل شئ په دروازه کښې په ټیټو بدنو او دا سے وایئ چه توبه او کا په مونږ ه معاف به کړو مونږ ګناهونه ستاسو

وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ۝

او زیات به کړو مونږ په نیکانو له ډیر څه ورکړو

بنی اسرائیل چه سلو لیښت کاله په میدان کښې اوګرزیدل او د غلامئ د زمانے غلام طبیعت
خلق مړه شو نوے نسل را پورته شو هغوئ د موسیٰ په جهاد ی حکم فکر او که نو دینه طیار
شو چه د دے صحرائی بے مطلبه ژوند نه خو مرګ ښه دے کو ته ئے مونږ ته، څو لیټی ئے نشته بلکه
څه کار روزګار ئے نشته طیار خوراک را نه جوړ شو۔ بیا یو جبر د وی د "تیه" په خوا کښې
"اریحا" "ایلیا" یا "بر عیا" کلی کښې د خدای پاک په حکم داخل شو۔ دا کلے د هر قسم

میوو دا نو نه ډک وو. روټۍ نه ده ورته تولو خېږو نو د خوراک اجازت اوشه- خو د اسلامی فتح شان چه څرنګ پکار وو هغه ورته او نه ښودے شه چه تاسو به جهاد کښې د چلي بهادری ثابتولو جذبه لری چه فتح اوکړی نو مغرور کیږئ مه د خدای د احکامو تابعدارې به هر حالت کښې کوئ د داخلے په وخت کښې چه د فتح په وخت کښې دا وخت ډیر د مستۍ او نشے دے خدای پاک حکم کوی چه په دے کښې د خدای پاک شکر اداکئ د هغه نه بخښنه اوغواړئ د مکے فتح د حضرت صلے الله علیه وسلم په سورلۍ کښې سجده کول د دے عملی ثبوت دے د فتح نه پس د خدای حمد و ثنا او ستائنه ویل او خپل دشمنان معاف کول، دغه احسان وو. بیا سے فتح کښې خدای پاک ډیر نه ډیر احسان په بندګانو کوی.

مونږ هم فتح غواړو خو جهاد نه کوو، استغفار نه پیجنو احسان کول را ته نه دی معلوم، څو مونږ وطن څو د پاره "تیه" دے- څو مونږ لامذهبا ده بدطینتی، د دین مذهب نه بے خبره، په مذهب پورے توقے کونکی اکثر مشران، د مسلمان نه دومره ناامیده شوید دی. چه به جهاد او یوائځ د مسلمان په کوشش کار کول ورته ناممکن ښکاری، قبله نه پیجنی، په مسلمان نوم شرمیږی مخلوط نسلونه پیدا کیږی، د مغربی تهذیب عذاب څو مونږ د ځوانانو په زړه او دماغ کښې نال کیږی. د بنی اسرائیلو سرګردانی او د جهاد نه کولو سزا سلو یخت کاله وه آخر خلاصه شو د خدای پاک لپاره ډیر فرمان برداران پیدا شو- جهاد اوکه او د "تیه" د میدان نه اووتل خدای پاک دے مونږ هم د دے میدان نه په هغه رنګ او باسی څرنګ چه د مسلمان شایان شان وی دا لوګه تنده، بے عزتی، د کافرانو غلامی، لامذهبی باطل نظام دے خدای پاک د خه کار کونکو بندګانو په برکت په میوو، غلو، عزت، دینداری، ایمانداری، د خدای قانون په تابعداری بدل کړی آمین، د قَلِیْلٌ مِّنْ عِبَادِیَ الشَّکُوْر

مونږ مسلمانان او جهاد

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا عَلَى

پس بدل کړه هغو کسانو ظالمانو دغه وینا په غیر د هغې وینا سره کومه چه ووئی شوه دوی ته خو دلے شوه ده لیس راکوز کړو مونګ په

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ؀

هغو ظالمانو یو ازی آفت ځکه چه دوی نافرمان وو

ع ۶

د حکومت حصول او بقا

یو د بادشاهئ اخستل دی او بل بیا دا بادشاهی باقی پاتے کیدل دی د بادشاهئ دا اخستل د پاره جهاد ضروری وو او ترسو چه بنی اسرائیلو جهاد نه و کړے هغوئ په میدان تیه کښ سرګردان ګرزیدله تر د ے حده چه دوی په دے پوهے شو چه واقعی بے د جهاد نه کښته ناممکن ده د بینه دوئ غاره کیښوده او د اریحیا خاوندے کلی اختیار دوی واخسته او س د اسلامی بادشاهئ او د پیغمبرانه نظام حکومت شان دا دے چه فاتح به یوازے معاشی جوندخپل اخری منزل نه ګرزوی خوله شپه او ورځ به د ډوډی ډوډی وظیفه نه کوی بلکه د خدای پاک به شکر یه ادا کوی چه دا کنه ، دا موړ والے ، دا فراخی او دا اختیار ستا په احسان دے خدای پاک نه به سجدے کوی او د هغه نه معافی غواړی د فتح په وخت کښ هم او د فتح نه پس هم دا د اسلامی او غیر اسلامی فتح فرق دے

او س بنی اسرائیلو د جهاد په مسئله خو عمل او کړ ځکه چه دوی پوهے شو چه بے د جهاد نه ځمونږ لوږه نشی لرے کیدے . مال دولت نه شی راتلے خو سجده و کولو ، او د خدای فرمان برداری ته طیار نه وو بلکه هغوئ د غلامئ په وجه او د فرعونیانو د بد صحبت او ناکاره عقیدے په وجه سجده ته ، استغفار و ته ، احسان کولو ته نه وو طیار . بس یو ځو هغوی سجدے او نکړے او په ځائے د تعظیم دوی سجدے له د ځوتړ نه ورکه دوئ د استغفار په ځائے هم هغه خپل د ډوډی د جهاد خیال ښکاره که چه غنم اوړه غواړو دا قسم فتح او دا قسم جهاد کافران

کوله شي او همیشه دوئ داسې کوي. څو موسیٰ علیه السلام بني اسرائیل طرف د کیڼه مړ و لو
د پاره نه وورا وستي په يو جه هغوئ که د جهاد نه کولو سزا سلو بخت کاله سرگردانی بیا مونږ
نو د سجدې نه کولو د استغفار نه غوښتلو او احسان پر لیبنودو به وجه په اسماني طاعوني
عذاب کښې گرفتار شو. او په زرگو نو خلق په کښې مړه شو

تا سوا ولیدل چه د جهاد نه کولو سزا ډیر نه ډیر لویه ننگه او ډیره ډیره په گنده
او سپیل وه لیکن جوندی خو وه. او د سجدې نه کولو، د استغفار نه غوښتلو او د خدای
پاك په کلام پورې پیټو قر کولو باندې جوندی هم نه پاتې کیږي او په ډیر مردار رنگ په
ډیر تعداد کښې مري. څوك شته چه قرآني قصې په داسې رنگ کښې او گوري. تاریخي قصې والې
رو ستو والې د قرآن مضمون نه دې. عبرت او نصیحت ئې مطلب دې. خدایه! ته خبر یو هیږې

## وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ

او چه او غوښتې موسیٰ اوبه د پاره د قوم خپل نو او وې مونږه چه او وهه په امسا خپل سره گټه

## فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ

پس را او خوټکیدې د هغه نه دولس چینې چه هر سړی خپل گهاټ پیژندلو

## كُلُوْا وَاشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ

خورئ تا سو او څښئ تا سو د خدای د رزق نه او په زمکه کښې فساد کونکي مه گرځئ

د تیه، میدان دې د جهاد نه د انکار سزا ده کله د غه ونه تللې دي. کله په لگه راغلې کله ورته
د او بو تکلیف دې د پیغمبر دا مطلب وو چه بني اسرائیل سره د جسماني ازادئ د یو نیك صحیح
او د امن نه ډك الهي نظام کښې راولي په هغې لنگې کښې د دوی تکلیف لرې کیږي خو ور سره

موسیٰ پیغمبر هغه خپله د نظام الٰهی د تعمیل خبره کوی . چه د ښځی عبادت کوی نو معافی ور نه کیږی او ترغیب ورکیږی چه لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ د داسے رحیم خدای احسان او منئ او د هغه احکام قبول کړئ که د خدای پاك د لیډلو نامناسب سوال کوی او په عذاب کښ د گرفتار نه پس بیا ژوندی کیږی نو بیا ورته د لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ سبق ورکړے شی د عیسے چه په ایلیا کښ فاتحانه داخلیږی نو د اسلامی فتح شان ورته ښودلے شی چه په دے کښ خاکساری او سجدے کول پکار دی او د عام خلق محسنین دی او چه څوك نیکان دی نه هغوئ د فتح او د فتح د باقی پاتے کیدو حقدار گرځوم او چه پدے مینځ کښ څوك کیږی نو خدای پاك ورله د موسیٰ علیه السلام په معجزانه قوت سره د ولس څښے په داسے سبب باندے پیدا کوی چه د دے نه مخکښ هغوئ نه وو لیدلے . چه د هسا په ذریعه د گټے په وهلو سره دولس چینے پیدا کیږی او هم هغه خپل فرض موسیٰ علیه السلام بیا ادا کوی چه تاسو خوراك سکاك فراخ کوی خو په زمکه کښ به د باطل نظام د شیطانی ، طاغوتی حکمو نو تعمیل نه کوی دا سراسر فساد دے . د موسیٰ پیغمبر رانلل د دے غرض د پاره وو چه بنی اسرائیل د فرعونی نظام حکومت نه خلاص کی او د پیغمبرانه اصلاحی نظام تابعدار ئی او کی . چه په زمکه کښ امن پیدا شی .

تاسو پوهی شوی چه د حضرت موسیٰ د پیغمبری غرض او مطلب کار الٰهی نظام قائمول وو او د دے د پاره فرعونیان او قبطیان طیار نه وو . بنی اسرائیل د پیغمبرانو اولاد وو د هغوی نه امید وو چه دوی به طاغوتی او فسادی نظام حکومت پریږدی او الٰهی نظام ته به غاړه کیدی . پدے وجه موسیٰ علیه السلام ، سره د بنی اسرائیلو نه شام طرف ته رارران شه خو په لار کښ بنی اسرائیلو د باطل بادشاهئ د خویو نو نه داسے اثر اغستے وو چه قدم په قدم به دوئ اری کوله . موسیٰ علیه السلام به دوئ په تلاره پوهول - د موسیٰ علیه السلام او د بنی اسرائیلو ترلد واقعه

د موسیٰ علیه السلام پیغمبری او الٰهی قانون

په دے رنګ کښې کمزورئ دا خیال مه کوئ چه ګنې پیغمبران بوازے د کتو بتان ماتوی تش په جماعتونو کښې د سجدو ، استغفارونو د پاره خلق طیاروی او بالکل نظام حکومت سره کنے غرض نه لری -

فساد ، په زمکه کښې فساد دا دے چه د زمکے انتظام مه خرابوئ - کوم بنی ادم چه د خدای د بندګئ نه اوزی او د خپل نفس یاد نورو د بندګئ امیل په غاړه کښې دا چوی ، د خدای پاک هدایت پرېږدی خپل اخلاق او کردنے جوند په داسے اصولو او قاعدو قائم کړی چه د خدای نه سوا د بل چا د راهنمائی متاثروی دا بنیادی فساد دے . په دے سره په زمکه کښې فساد پیدا کیږی او د دے فساد منع کول ، د خدای او د هغه د رسول کار دے هم د دے خبرے د پاره قول پیغمبران راغلی دی چه په الهی نظام سره اصلاح او روغ والے قائم کی . دغه د موسیٰ علیه السلام هم غرض وو .

وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ

او ( یاد کی هغه وخت ) چه او وے تاسو موسیٰ ته چه مونږ بوازے په یو خوراک صبر نشو کولے نو ته مونږ د پاره د خدای نه سوال اوکه

يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ مِنْۢ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُوْمِهَا وَ

چه را اوکړی مونږ د پاره قول هغه خیز ونه کوم چه د زمکے پیدا وار دے لکه سبزی . ترکاری غنم دال

عَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ؕ قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِیْ هُوَ اَدْنٰى بِالَّذِیْ هُوَ

پیاز اوکه موسیٰ او وے (افسوس) تاسو د یو عمده او بهتر (خوراک یا قومی عزت) په ځائے سبزی وغیره خوری

خَيْرٌ ؕ اِهْبِطُوْا مِصْرًا فَاِنَّ لَكُمْ مَّا سَاَلْتُمْ ؕ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَ

هغه ده کوز شئ او ختارته وران شی تاسو به پکښې خپل خوراکونه بیا مومئ . او مقرر شه پتاسو ذلت او

الْمَسْكَنَةُ وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ

عاجزی ارگرفتار شو دخدای په غضب کښې اوراذلت په دے وجه او شو چه دوی کفر کاوو

بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَّ

دخدای په آیتونو او په بے باکئ سره دوی پیغمبران وژلل بے گناه او دا ځکه چه دوئ نافرمان ار

كَانُوْا يَعْتَدُوْنَ ۝

دحد نه تیریدونکی وو

په بني اسرائیلو د غلامئ اثر وو او د دنیاداخوراکونو نه محروم خلق د دنیا خه خوراکونه حاصلول خپل عزیزا وقیمتی مطلب گنړی دوی په مصر کښې په کاشتکاری عادت وو په ذلت کښې مختلف خوند لرونکی څیزو نه د دوی خوراك وو الله اژا سلوی سوه کاله د یوسف علیه السلام تیر شوی وو بني اسرائیل مشرکان شوی نه وو. خو د فرعونیانو قبطیانو په طفیل چه د مختلف بُتانو عبادت کونکی وو په دے کښې د ما ده پرستئ او د دنیا د عزت او د مال دولت د کتے خیال نو غرض گرز بیدلے وو. د یوسف د پیغمبرئ د زمانے د لری والی او د قبطیانو د ماکانه صحبت اثر وو. چه د موسیٰ علیه السلام نه په سفر کښې دا قسم سوالونه کوی چه مونږ خو یوازے یو خوراك نه شو خورے د مختلفو نو ند ونو سبزئ خوږ د پاره د خدای نه ارغواړه. موسیٰ علیه السلام حیرانیګی چه په غلامئ کښې پاتے شوے قوم! تو مره ذلیل خیالات لری؟ اعلیٰ لطیف خوراك چه بے تکلیفه رازی او د روحانی صفائی پاتے کیږ، و د پاره خه دے هغه پریدی ارسخت د تکلیف نه ټک پیاز او اوږه چه بدبو یه ده غواړی. د دوی سوال پوره کیږی لکه چه نور سوالونه یے پوره شوی وو چه حته ده دا نزدے کلی او ښارونه دی د سبزو نه ډک څوک لاړشی زمینداری، کاشتکاری کوی او اوګے پیاز خوری. خو تاسو بره دے خپلو

ورو او سپکو خبرو په وجه خوار او زاریږي.

دلته د دې بار بار سوالونو او پوښتنو د ذکر نه وي چونکه د خوراکونو مختلفو وجه بیانیږي
چې بني اسرائیل د پیغمبرانه تعلیم نه بې خبره پاتې شوي وو. دوی د الٰهي کلام په قدر نه پوهیده
او د دې درجې ته د غلامۍ په ژوند کښې ژوندي شوي وو چې فرعوني نظام حکومت ورته مرغوب
او محبوب ښکاریده، موسیٰ علیه السلام ته وائي چې د دې مَنّ او سلوىٰ نه خو مصر کښې ور
هر قسم خوراکونه او سبزي په کښې وې دوئ بچنپل عمر کښې د دې درجې ته رسیدلي وو چې
کوم پیغمبرانو به چې دوی ته د حق او باطل فرق خواره لیس مرکیزې چونکه د فائدې ونه
نه به ئې خبرول او دا به یې ورته وې چې الٰهي نظام کښې امن دی. مساوات دی، خوش
اخلاقي ده، سرښیوب دی نو دوی به وې چې کوره دې واعظانو ته. د طاغوتي او فرعوني
نظام نه څه شي بل هم کیدې شي؟ دا پیغمبران داسې خبرې کوي چې د کار ندی نو دوئ
به د خپلې سرکشۍ او نافرمانۍ په وجه دا پیغمبران قتل کړه

موجوده طاغوتي حکومت

ځکه د پاسه هم طاغوتي حکومت دې په موږ هم څه کافي دوزې د دې باطل
نظام تیرې شویدی. مذهبي تبلیغ، قرآني درس وتدریس لښته د قرآن په مطلب
د پوهیدو کوشش لښته. د مال دولت په برالې جنت گڼلې شي. معاشي چونکه ځکو نه
اخري او غرضي مطلب گرزیدلې دې. د دې مشین پرزې جوړیدل فخر گڼلو. په دې
کښې په ښتو تر اسبارکې اخلو. بچپله خوشاله یو. دوستان مو خوشاله وي. اعلىٰ مقصد
قیام امن، نفاذ د قوانین الٰهي احکام مو نه غرض دی او نه د الیقین لرو چې گنې په قرآن کښې
څه داسې نظام شته چې په هغې د امن پادشاهي قائمیدې شي که چا د قرآني تعلیم طرف
ته ترغیب ورکړه او د دې په باره کښې یې وینا اوکړه چې د مسلمانان د پاره حکم ...

معاشیات حاصلول او په باطل نظام حکومت کښې حصه دار جوړیدل یو ادنیٰ بلکه ناکاره شیز دے تو هغه خوبز په نظر کښې واجب القتل د خندا قابل د ډېر رامواو قوتو مستحق وی واقعه داده چه د غلامانو طبیعت یو وی خو که پیغمبرانو ځان قتل کړ او خپل کار پرے نخود، نو د قرآن شریف حاملینو له بکار دی چه پس د غلامانه تیرے کښې د قرآن شریف د رنړا د پاره کوشش اوکی. انجام به یې د حق غلبه وی.

اِنَّ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا وَالَّذِیْنَ هَادُوْا وَالنَّصٰرٰی وَالصّٰبِـِٕیْنَ مَنْ

بے شکه هغه خلق چه ایمان راوړی یا یهودیان یا نصاری او صابیان دی خوچه دوی

اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ عِنْدَ

ایمان راوړی په خدای باندې او په ورځ د آخرت باندے او د هغوی عمل هم نیک وی نو د دے ایمان او عمل بدله به د

رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَیْهِمْ وَلَا هُمْ یَحْزَنُوْنَ ○

خدای سخه بیا موی نه به یې ډر وی ډیره دی او نه به غمجن دی

دلته د یو لوی قانون الٰهی اعلان او شه چه نیک بختی د دنیا او آخرت خوشالی یوازے په ایمان او خه عمل حاصلیدے شی. نسل، خاندان، یا تشے مذهبی ډلے د نجات ذریعه نه ده تا سو او کورئ چه د یهود یا نو یو خاص خاندان وو او خاص مذهبی ډله وه خو چه د ایمان او نیک عمل نه محروم شو نو مغضوب او نامراده شو. په دے اعلان کښې که یو طرف ته د یهود د مغضوبیت ذلت او مسکنت وجه بیان شوه نو بل طرف ته د اسلام رواداری او فراخی او نبود ے شوه چه په اسلام کښې هر ډله په دے اجازت نامے سره داخلیدے شی چه ایمان راوړی او عملاً خپل ځان نیک کی. که یهود بیا دے اصل ته را او گرزی نو دد دی د پاره په دے اعلان عمل کول بکار دی دغسے نورے مو لے مذهبی ډلے که غواړی نو تش مذهبی قانونِ الٰهی اعلان

مذهبي ډله بازي دے پریښې دي. په خدای پاک او آخرت دِ یقین او کی او عمل دِ سم کی نو د هر قسم دنیوی اُخروي غم او ویرے نه به په امن شي.

خدای په دے قانون کښ د ایماندار و چه ایمان راوړیں ے او عملونه یے ښه دي ځکه ذکر او که چه د مؤمنانو د خدای سره نزدے والے که دے نو دا هم ځه په ټله خصوصیت نه دے بلکه د دے سبب ایمان او نیك عمل دے. که دا صفت په بله ډله کښ پیدا شي نو دوی به هم د خدای سره قرب حاصل کړي.

یهُود د یعقوب علیه السلام مشر زوے وو او بادشاهي د ده په اولاد کښ وه په دے وجه د بادشاهانو د خوشالئ د پاره خلقو ځان ته یهودي ویل شروع کړه او بیا د ټول قوم نوم شه.

نصاری د عیسیٰ علیه السلام مددګارو ته وائی. صابي یو اهل کتاب خلق وو څوك وایي زبور مانه، د ستورو عبادت کا وو. او مونږ به یے هم کاوو. خو مونږ ته به ئے ځه کاوو. خیر اهل کتاب وو خو بیا شرک ته اوړ سیده

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم

او چه واخسته مونږ ستاسو نه وعده او پورته مو که ستاسو باندے طور غر چه کلك او نیسی دا هغه این (تورات)

بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ۝ ثُمَّ تَوَلَّيْتُم مِّن بَعْدِ

او یاد کړئ هغه بیان چه په دے کتاب کښ دے په دے ستاسو د نا فرمانئ نه بچ شي خو تاسو د دے نه پس مخ او ګرځوو

ذَٰلِكَ فَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَكُنتُم مِّنَ الْخَاسِرِينَ ۝

که د خدای فضل او مهربانی پتاسو نه وے نو تاسو به نور اتباه او زیان کارشوی وی

بني اسرائیلو به هسے په نمائشي رنګ کښ د شریعت د منلو اظهار کا وو خو په اصلي طور سره

به ئې د عمل نه تښتنه کوله او د شریعت نه د تښتې د پاره ئې عجیبه عجیبه چلې لټولې.
چه موسیٰ علیه السلام ته تورات ورکړے شه نو هغه ئې قوم ته واورو. په دے کښې حکمونه د
هغې خلقو د حال مناسب سخت وو نو دوی اول خو دا اوروے چه خدائیٰ دے موږ ته په ښکاره
او وائي چه دا خما حکمونه دی او هم د دے د پاره ادیا کسه تلی وو چه هغوی د تورات سره
راغله نو دوی دا سے ګواهي اوکړه چه آؤ، دا حکمونه دی خو په آخر کښې خدای دا سے هم
ویلي دی چه کوم حکمونه منلې شی هغه دے منی او چه نه شی منلے نو هغه دے پریدی په دے
شهادت او په چلې نافرمان طبیعتی او د احکامُ د سخت والی په وجه ئې د تورات د منلو نه
صاف انکار اوکړ بیا دے وجه خدای پاک فرښتو ته حکم ورکړ چه د طور یو ه ټکړا په
راپور ته کړئ، قوم پریدی رنګے وو. په غلامئ کښې اوسیدلے خلق وو، د منلو وعده ئې
اوکړه، د کوه طور په دوی او چتولو کښې زبردستي نه وه دوی په اصل کښې ایمان په
خپل رغبت راوړے وو، د اسلام په هسپتال کښې داخل شوی وو خو د دارو خوړلو
نه ئې انکار کاوو، نو دارو د هسپتال مریضانو ته په زور ورکول نه خلاف عقل دی
او نه په کښې د لَآ اِكۡرَاهَ فِي الدِّينِ مخالفت دے زبردستي په کافرانو لښتنه چه په دے دائره
کښې نه دا خلیږی نو د اسلامي حکیم په هغه زور نشته چه دے را اُسنی او علاج په زوره اُکی د
عذاب اُخروی نه په دا سے نافرمانئ چه د شریعت نه د خلاصیدو د پاره چلے لټوی
خلاصے نشي کیدے خو دنیوی جونه پیا سے نافرمانو ته ختمیږی دوی په مهلت کښې دی

دکوه طور اوچتول اکراه نه ده

وَلَقَدۡ عَلِمۡتُمُ الَّذِينَ اعۡتَدَوۡا مِنكُمۡ فِي السَّبۡتِ فَقُلۡنَا لَهُمۡ

او یقیناً تاسو پیژنی حال د هغې خلقو چه زیاتے کړے و تاسو نه په خکاله د شنبې د ورځې کښې پس اووے موږ هغوی ته

کُوْنُوْا قِرَدَۃً خٰسِئِیْنَ ۝ فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَیْنَ یَدَیْهَا

چه شئ تاسو شادوګان ذلیل | پس اوګرځوله موږ دا واقعه نصیحت د پاره د حتی خلقو

وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِیْنَ

او د روستو راتلونکو او وعظ د پاره د پرهیزګارانو

د موسی علیه السلام نه پس د تورات د تبلیغ د پاره ډیر پیغمبران راالیږلی شوی وو یوشعؑ، الیاسؑ، ذوالکفلؑ علیهم السلام پرله پسے پیغمبران وو بنی اسرائیلو به څه روزے د دوئ په وینا عمل اوکه خو بیا به ئے انکار اوکه. او د دے لویه وجه دا وه چه پیغمبر سخه به بادشاهی، مادی طاقت او سامان جنګی نه وو بادشاهان به اکثر په خپل طاقت غاوره وو دوی به د پیغمبرانو مخالف شو او په شریعت کښ به ئے فساد اچوو دا حقیقت دے چه د ملك طاقت مند خلق د بوخاند الی منش نه تو بادشاه پورے د دین مخالف شی نو په اسے حالاتو کښ د شریعت د احکام تسلیم خو پریږده تبلیغ ګران شی. ننخوننه هم دغه حال دے البته په کوم اسلامی ریاستونو او ولایتونو کښ چه والیان د شریعت پابند دی علته به د شریعت قدر و منزلت وی او د شریعت د پوهیدونکو د پاره به مشکلات نه وی بلکه به وی ارهغوئ به د شریعت قدر و منزلت وی او د شریعت د پوهیدونکو د پاره به مشکلات نه وی بلکه به وی ارهغوی به د شریعت د تبلیغ تدریس او اشاعت د پاره عملی ادارے درسګاهونه، مبلغان، دارالقضاء قائم کړی وی.

بالاخر خدای پاک داؤدؑ نبی که او بادشاهی ئے ورله هم ورکړه ډیهودیان پخپلو دوارو طاقتونو سره د تورات تابعدار کړه او په کومے سرکشئ چه دوئ پیغمبران قتل کول

پیغمبری او بادشاهی

د دے سزا یے سپاموند ہ۔

د حضرت داؤد علیہ السلام زمانہ وہ د شام مغرب طرف تہ د سمندر پہ غارہ یوہ آبادی وہ چہ د ھغے نوم ایلہ وو پہ دے کښں اندازًا اتیازرہ یہودیان اوسیدہ او د دوی د سوداگری بازار د میانو پہ ښکار گرم وو۔ ابن عباسؓ لیکی چہ د دوی د پارہ داؤدؑ پیغمبر د خالی ورځ د عبادت مقررہ کړہ۰ او حکم او کړہ چہ پہ دے ورځ بہ یوازے عبادت کوی ښکار بہ نہ کوی بنی اسرائیل د زړہ د اخلاص عبادت کونکی نہ وو نو عبادت بہ یے حکمًا کاوو خدای پہ دوی یو امتحان کوی چہ د خالی پہ ورځ بہ توّل میان د اوبو سر تہ راتلہ او پہ نورو ورځو کښں بہ دننہ وو۔ یو طرف تہ د عبادت حکم او بل طرف تہ د تجارت خواهش وو۔ او هم دینہ امتحان واپی څه روزے خو دوی صبر او کړ خو یو روزے یو سړی یو چم د خالی پہ ورځ اونیوہ پہ تارِ او تارہ او پہ غارہ د دریاب ځمزے او تارہ مے یے دریاب تہ پریښودہ بیا د اتوار پہ ورځ ھغہ او نیوہ۔ د غسے دے حیلہ بازسړی داچل پہ بل خالی هم او کړ چہ نورو بنی اسرائیلو تہ دا پتہ اولگیدہ نو هغوی هم دا حرکت شروع کړ۔ پس دے حیلے خو پہ دوی گرفت اونشہ لیکن دوی پرزړور شوا و خبرہ د حیلے نہ ښکارہ تہ شوہ چہ د دریاب پہ غارہ یے ډنډونہ او کنستہ کہ دریاب نہ ځے ورتہ لختی راوستہ۔ د خالی پہ ورځ بہ دینہ کبان راغلہ او بہ بہ ورے وے ډنډونہ بہ دړونگی وُ۔ کبان بہ پہ کښں پاتے شو د اتوار پہ ورځ بہ دوی د دغ میانو ښکار او کړ او پہ بازار و نو کښں بہ یے د دے سوداگیری کولہ داؤد علیہ السلام دوی د دینہ منع کړہ چہ دا حیلے او د خدای سرہ چل مکوئ خو بنی اسرائیل درے ډلے شو یوے خوا دوے چہ مونږ پہ دے حیلہ کښں نہ مخکښں شریک وُو۔ او نہ بہ پکښں شریک شو بلکہ خلق بہ د دے نہ منع کوُو۔ بلہ ډلہ داسے وہ چہ هغوی ښکار نہ کاوو خو خلق بہ یے نہ

نه منع کاوو بلکه دوئ به نا صحانو ته وے چه دوی ته نصیحت مکوئ - دوی خدای تباه کوی نو تا سوور ته نصیحت سله کوئ - دریمه ډله صاف نافرمان وه

پر اسلام کښ حیله

خدای د دوی ستو دوا ډوډلو مخونه اد عبادت د روژے د بے عزتی، د خدای د حکم د نافرمانئ او حیله بازی په وجه د ښکو په مرض د شادوګانو ښسے کړه او ډیرونه یے هم د شادوګانو ښسے شو او په دریے روز وکښ دا ټول ټول هلاك شوالبته ناصحه ډله دے عذاب نه خلاص شوه -

څونه په عقل پوے غادره خلق دی په دے تعجب نه کوی - که د یوفلاسفر په دے نظریه کښ ورته تعجب نه ښکاری چه انسان د شادوګانو د ترقی یافته حالت نوم دے نو بیا دے رجعت قهقری سره د غه انسان د تنزل په حالت کښ خپل زوړاصل ته راتلل ولے بعید از عقل دی او څرنګ چه ترقی په نامعلومه تدریجی رفتار سره شوبده دغسے تنزل هم پس د ډیر مهلت نه شوبدے

تفکر

حدیث از مطرب وے گو وراز دهر کمتر جو
کہ کس نکشود ونکشاید بحکمت این معمارا

د شریعت د ښکاره حکمونه په حیلو سره ځان خلاصول په تلاره تلاره ځان د عذاب مستحق جوړول دی حیلے په شریعت کښ کول ډیر لوئے جرم دے

د عبادت او تجارت مقابله

په دے واقعه کښ د عبادت او تجارت مقابله ده په تجارت اعتنلو او عبادت پریښودلو سره دا عذاب راغلے دے نو تاجران دے ترخاصکرا وترقول هغه خلق چه پخپلو دینوی مجلسونو په لارکوسه بازار کښ په تا ستنه سره د عبادت د وخت بے عزتی کوی او فرض مونځونه نه کوی یا فرض مونځ کوی خو خلقو ته نصیحت نه کوی چه تاسو هم مونځ اوکئ نو هغوی دے ته نصیحت

داخلې چه لېږ دے او ګډ مهلت نه په دوئ انجام څه وی؟ خوش قسمت دی هغه کسان چه
ځپله هم عبادت کوی او نورو خلقو ته هم د عبادت نصیحت کوی۔

اسلام یو ملت دے، یو تحریک دے، یو دین، سوکړ دے، هم رازی۔ تازګی او سپرلے هم
دے وینی اقبال او ادبار دواړه د دے اشنا دی شریعت هغه وخت په خزان کښې وی چه د
شریعت سره حکومت نه وی یا حکومت د بے دینه خلقو په لاس کښې وی۔ د قرآن د تاریخ واقعات
صرف تاریخ نه دی بلکه د دینه مراد عبرت وی خو د چاد پاره، د خدائ نه سوک پاره ناخدا ترس
خلق نه د قصه ګوری او نه د یقین کوی چه کنے د دوی د شریعت نه بے پرواهی د عبادت د
و ختو نو بے عزتی او حیله بازی به د دوئ د حیوانیت قوتونه شکاره کی او انسانیت به پرِ
فنا شی په انسان کښې خو سم خیلې دے دره بادشاهی وی د دوی توزونه او مورچے دی دانه
شی کیږے چه دواړه فاتحان وی یا جائیں او تقسیم کړی چه نیم انسان د حیوانیت
ملکیت شی او نیم کښے د انسانیت په قبضه کښې شی دلته خو د مسلمان والی د پاره حکم دے
چه اُدْخُلُوْا فِی السِّلْمِ کَآفَّۃً، قول انسانی قوتونه د حیوانیت نه خلاص کړی او د انسانیت په
شغ اصولو چه خدائی او د هغه رسول خو دلیدی روان کړئ د غسے مسلمان قوم کښې هم
دو رنګی نه شی راتلے چه کله به د مسلمان سره دوستی کوی او کله به د کافر سره محبت ساتی
کله به خدائی نظام منی او کله به د باطل نظام حکومت پرزه جوړیږی دا هم لشی کیدے چه
مسلمانان او نه مسلمانان به یوزائے په اتفاق سره داسے قانون جوړ کړی چه هغه به د مسلمان
او د نه مسلمان دواړو د پاره یو شان فائده منددوی۔ تش په نوم مسلمانان، خاندانی
مسلمانان چه خپله انفرادی او خانګی شپه او ورځ په غیر اسلامی رنګ کښې تیروی هغوئ
هم د مسلمانانو د پاره د شرعی قانون د نفاذ کار نشی کولے، څونږ د هندوستان موجود

زمانه او قریب مستقبل د اد بار په ے اقسام کښې کیږدے - اقبال داد ے چه انفرادی اسلامی جوند تیروونکے خلق رابوځائے شی او یو صالح جماعت جوړه کړی او دا جماعت د کلو نه خارونو ته او وطنونو ته او رسی او بیا نظام حکومت په لاس کښې داخلی او الٰهی نظام نافذ کړی

یاد اچه د اسلامی ریاستونو والیان په کور کښې کینی او په ے فکر او کړی چه محمود په ے محدوده دائره کښې کم از کم د اسلامی شریعت نفاذ پکار دے او د اسلامی شریعت درس و تدریس د پاره داسے ادارے قائم کړی چه د اطرافو نه خلق د لته سیراب شی او بیا د خپلے اصلاحی جذبے په وجه په خپلو هغه علاقو کښې چه د قوم د پاره پکښې درس، تدریس، تبلیغ، تصنیف، اشاعت، وعظ ونصیحت لښته په سرگرمئ سره کار او کړی. دا بوه خاکه ده چه د تفسیر کتونکی په زیات غور سره د دے اقبال انداز ه لګولے شی او که داسے او نشی نو نن چه کوم قدرے ظاهری شریعت د رسم په رنګ کښې کیدے شی. خدای دِ نه کړی دا به هم نن د خاندانی مسلمانانو د مغربی یا هندوانی اثر په وجه ورک شی تاسو په فکر او کړی، اے خدایه موږ ته د غه وخت او نه ښیے او نه یے راولے امین -

اقبال

اے فواد اے فیصل اے ابن سعود ؛ تا کجا بر خویشتن پیچیدن چو دود

زنده کن در سینه آں سوزے که رفت ؛ در جهاں باز آور آں روزے که رفت

وَاِذْ قَالَ مُوسٰى لِقَوْمِهٖۤ اِنَّ اللّٰهَ يَاْمُرُكُمْ اَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ؕ قَالُوْۤا

او (یاد که) چه اووے موسیٰ قوم خپل ته چه تاسو خدای حکم کوی چه تاسو یو غوا حلال کړئ نو اووے دوی

اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ؕ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ۝ قَالُوا ادْعُ

چه ته موږ سره توقے کوے اووے موسیٰ چه پناه په خدای سره که زه توقے او کړم نو شم به د جاهلانو نه دوی اووے چه د خدائے نه سوال او که

د مسلمان اقبال او والیان د ریاست

لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ

چه سرګند کړي مونږ ته دا غوا او بیښ چه دا څنګه ده اوړے موسی چه حق ای وائی چه دا غوا نه بوډۍ ده او نه ځوانه ده

عَوَانٌ بَيْنَ ذَٰلِكَ فَافْعَلُوا مَا تُؤْمَرُونَ ○ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا

میانه حال ده به منځ د دے کښ پس اوکئ چه څه رنګ تا سو ته حکم کیږي اووے دوي چه سوال اوکه دباره ځمونږ چه سنکاره کړي مونږ ته

لَوْنُهَا قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِينَ ○

رنګ د دے اووے موسیٰ چه وائی خدای چه دا یوه غوا ده زیړه د خالص زرنګ د دے خوشالوي ساتر کے د کتونکو

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّن لَّنَا مَا هِيَ إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّا إِن

او دے دوي چه سوال اوکه د باره ځمونږ چه بیان کي د باره ځمونږ چه په څه شان ده دا غوا نا معلومه شویده په مونږ ده دا غوا او مونږ به که

شَاءَ اللَّهُ لَمُهْتَدُونَ ○ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُولٌ تُثِيرُ الْأَرْضَ

خدای ته منظور وي لار بیا مومو، اووے موسیٰ چه دا یوه غوا ده چه نه دا جوته ده چه ابه وي ځمکه

وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيهَا قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ

او نه سیراب کوي پټے روغه ده داغ په کښ نشته اووے دوي اوس تا سمه خبره اوکړه

فَذَبَحُوهَا وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ ○

پس حلاله کړه دوي دا غوا او دوي دا کار کونکي نه وو

د وعدو ماتولو د حکمونو نه منلو د دے نتیجه بیانیږي چه څومره انعامونه پرا وشوا د دوي

سرکشۍ معاف شوے چه وعدے یے اوکړے بیا هم د موسیٰ علیه السلام نه په معمولي حکم کښ

کښې څه کرزوي په هغه اعتراضونه کوي. بلکه په سختو کښ ځان اچوي. د غوا د حلالے حکم

اوشه که په دوي کښ د نبي محبت وے نو فورا به ئے یوه غوا حلاله کړے وه، خبره خلاصه

وه خو کوک تعیینی نکته چین وو سوالونه یے کول او خبره یے ځان ته کرانوله. حضرت به هم د

داسې خلقو ته خفه کیږي چه د لږې ساده خبرې نه به ډېره لویه خبره جوړوله هم دغه خلقو اولاد د حضرت صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې وو چه د خپلو پلرونو په شان به ئې د لږې نه یوه جوړوله.

ابن عباسؓ روایت کوی چه په بنی اسرائیلو کښې یو مالدار سړے خپلو وارثانو د وجې او دعوی ئې په بې ګناه خلقو اوکړه د دے بې ګناه خلقو نه دیت غوښتے شه دوی دیت ته تیار وو خو داور سره خیال وو چه څوک په مینځ کښې به بې وجې دشمنی جوړه شي چه موسی علیه السلام سره دا مقدمه راغله نو موسی علیه السلام داسې حکم اوکړو چه یوه غوا حلال کړئ او د هغې په ټکړه دا مړے اووهئ دے به خپل قاتل ښکاره اوخیي اوس یو طرف ته بنی اسرائیل هسې نکته چینې وو بل طرف ته دوی په اصل کښې قاتلان وو که اصلي قاتل ښکاره کیږي خو هغه دوی دی په یو جه دوی د هم، د رنګ او جوړي والي سوالونه اوکړه او اخر کار یې قیمت د یو یتیم بچي غوا دوی راغښتنه حلاله یې کړه او چه د دے په غوښه مړے اووهلے شه نو موسیٰ پیغمبر په معجزه مقتول د ربنو سور را پا سیې او خپل وارث قاتل او ښودو ده بې ګناه خلق خلاص شه او وارث په قصاص کښې مړ شه د حصې نه محروم شو.

دا قصه مخکښې بے ترتیبه بیان شوې ده، ترتیب په تاریخي کتاب کښې پکار دے او قرآن تاریخي کتاب نه دے بله دا خبره ده چه د بنی اسرائیلو د نافرمانو داحسانا تو په منلو به ذکر کښې دا واقعه هم ده که ترتیب شروع شوے وے نو شاید چه د مخکښې سره به د دے واقعے ربط نه وو پاتې شوے بله دا ده چه د بنی اسرائیلو دعوی ده چه مونږ د ابراهیم علیه السلام اولاد یو، د جنت اصلي حقدار یو او حال دا دے چه یوه غوا یې په څومره سوالونو پس حلال کړه د ابراهیم علیه السلام خو دا حال وو چه د خوب په لید وسره اسمعیل

علیه السلام حلالے له بیای اردوی نه پیغمبر حکم کوی اردوی په کښې نکته چیني کوی. دا بزرګ زاد ګان چه د بزرګ تابعداری نه کوی نو هسے په صاحب زادګۍ والی خو د جنت مستحق نه جوړ یږی۔

په دے واقعه کښې د پس مرګیږے ژوند ثبوت ع بومش کانو ته ورکیږی چه دوی دے د قیامت په ورځ په ژوند یقین اوکی۔

دا غواړ یو یتیم وه او دا یتیم د مور د پر فرمان بردار وو دبني اسرائیلو دا نکته چیني د دوی د پاره خو باعث د دیر خرس او تکرز یې وه لیکن د یو یتیم کار په جوړ شه د عمر د پاره د تکلیف نه خلاص شه۔

د غوا په غوښه کښې ځان له څه اثر نه وو۔ د مقتول ژوند د موسی علیه السلام په معجزانه قوت سره وو. د غوا حلاله کړن بې لوجه وه چه بني اسرائیلو د غوا نه معبود جوړه کړے وو نو د دے په حلالے سره د دوی د زړه نه د غوا لوئي او سنکل وو۔ څومره په هندوستان کښې هم غوا معبود ده پکار خو دا وو چه د دے عظمت د هندوانو د زړه نه او ښکے شوے وے خو هندوان زور، قوت، تعلیم، پراپیګنډه، قومی ژوند، مالدار فیاض مشران لری هغوی څومره په زړه کښې دا خبره کینولے چه غته غوښه خوړل سرے غني کوی په دے سره زمیدارۍ ته نقصان رسی دا د صحت د پاره نقصاني ده وغیره وغیره دلائل څومره د مسلمانانو د خلے نه ازری د هندوانو مطلب د غوا، چه د هغوی مور او خدای دے، عظمت او لوئي تامنول دی او د هغوی دلالان د دے له اقتصادی او د صحت او مرض رنګ ورکوی ثوک شته چه د موسی علیه السلام هسے د دوی د زړه نه او د دوی د دلالانو د زړه نه د غوا د خدائیي لوئي او باسی، او مخلوق پرستی چه د خدای په نزد دیر لوئے جرم دے په هندوستان

[illegible]

کښې پاتې نه شي۔

وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا ۗ وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ۝

او چه اوواجه تاسو یو سړی لره پس اختلاف اوکړ تاسو په یکښې او الله ښکاره کوونکې د هغه خبرې لره چه تاسو پټولو

فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ۗ كَذٰلِكَ يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ

پس اوویل مونږ چه اووهئ په دې مړي ټکړه د غوا، دغسې ژوندي کوي الله مړي او ښايي تاسو ته خپلې نښې

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ۝

چه تاسو پوی شئ۔

دا هم یو خلق دی خلاف عادت واقعات منکران دي او دا غواړي چه خپل شاګردان هم د دینه منکر کړي یو جه بعض نوي مفسرین بې دا واقعه کښې ډیرې دلیل کوشش کړیدې چه دا واقعه بدل کړي خو هغوي خبره لاخراب کړیده د واقعې اهمیت د يُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ نه معلومیږي چه دا فعل خرق عادت دے۔ تش عو تکے او شعبدې ایت الهي نه جوړیږي که په یوه ټکړه غوښه کښې د مړ په رحو کښې یاد آګئ په زیړوا دسپینو کښې هغه روح اچوي او مړ ژوندے په لیږدو مره عادت شوي یو چه دا ورته خرق عادت نه ښکاري نو که یو مړ ژوندے کښې تاد رمطلق «ایت» خو لو د پاره دا سې اوکي۔ نو مونږ د ے د دینه رلې انکار اوکو څرنګ چه دے مړي د خپل قاتل خبر ورکه دغسې به ټول مونږ دا جسمونه ژوندي شي او د خپلو عملونو په باره کښې به شهادت ورکي

پس دغه مړی ژوندی شو

ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً ۗ وَاِنَّ

بیا ستاسو زړونه سخت شو پس دوی (عبرت نه کوو اخلاقو) نه پس دا زړونه لیپان د کلکوړی یا د دینه هم سخت دی او بې شکه

مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْاَنْهٰرُ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ

د بعض کښتو نه ولے راختکیږی او بې شکه بعض اچوی نو د هغه نه

الْمَآءُ وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللّٰهِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ

او بہ را اوزی او بې شکه بعض ګټے د خدای د ویرے نه را اُوغوځی او خدای ستاسو د کارونو نه بے خبره نه دے

په دنیا کښې ګټے کلک شے دے خو په ګټو کښې هم په مختلف حالاتو کښې نرم والے راځی کله د زمکے بخارات په ګټو زور راولی او ګټه او بوله لار درکی چینے ته را اوبهیګی. ورے یالوے ولے د ګټو د زړونو د چاودو نتیجے دی بعض ګټے چه دا نه کوی نو د خدای د ویرے د هغے بیان اشوو سبیو نو په وجه سبکته را اُوغوځی د یهودیا نو زړونه په دا سے عجیبه واقعاتو سره پکار دا وو چه نرم شوے وے بلکه هم د رسول تابعدار شوے وے او نور هم د دوئی د فیض نه فیضیاب شوے وے په پیر واو لکو جراګانو سره د درو لو یو چینو هسے دوئی د خپلے فرمان برداری ثبوت ورکړے وے او که دا هم نه وے نو چه کله کله په دچو ستر ګو خودوی خدای نه په سجده کښې پریوتے وے لیکن یهودیان ډیر سخت زړی دی، سنګدل والے په کم دے چه مړے پخپل مخکښې جوندے زیني چه پخپل قاتل ښکاره کوی او دوی والي چه مونږ قتل نه دے کړے دا مړے دروغ والي بهرحال په دنیا د کلک ګټے عونده خیز نه هم د دوی زړونه زیات کلک دی خو خدای پاک د دوی د دے عملونو نه بے خبره نه دے دوئی له به خدای پاک د دے سزا ورکی۔

په ګټو کښې د خدای د ویرے اثر او د خدای د ویرے نه د ګټو په رغړیدو مه حیرانیږی دا صحیح ده چه عقل احساس وغیره قوتونه په انسان او حیوانا تو کښې ډیر د کمال په درجه کښې دی خو نور مخلوق هم د خپل شان مناسب دا فاعلي او انفعالی طاقتونه لری. يُسَبِّحُ لِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ که څما تسبیح په ژبه ویلے شی نو د دنو عنو ګټو تسبیح به په هغے قوتونو سره

کیږی کوم چه ځما او ستاسو پټ دی موږ ته د حقایق الاشیاء دعلم په سلسله کښې ډیر منزل پاتے دے ۔

اَفَتَطْمَعُوْنَ اَنْ یُّؤْمِنُوْا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِیْقٌ مِّنْهُمْ یَسْمَعُوْنَ كَلٰمَ اللّٰهِ

اے طمع کوی تاسو (اے مؤمنانو) چه ایمان به راوړی (دا یهود) دپاره ستاسو او حال دا دے چه اوریدو به یو ټولګی د دوی نه کلام د خدای

ثُمَّ یُحَرِّفُوْنَهٗ مِنْۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوْهُ وَهُمْ یَعْلَمُوْنَ ۝ وَاِذَا لَقُوا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا

او چه دوی یو ځای شي دهغې کسانو سره چه ایمان راوړی او بیا بدلوو دوی دا کلام پس د پوهې او علم نه

قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚۖ وَاِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ قَالُوْٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَیْكُمْ

نو وائی دوی چه مونږ ایمان راوړی او چه یو بل سره جدا یو ځای شي نو وائی دوی چه تاسو ولې ښکاره کوی مسلمانانو ته هغه خبرې چه تاسو ته الله ښودلي

لِیُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ عِنْدَ رَبِّكُمْ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ۝ اَوَلَا یَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ یَعْلَمُ

چې دلایل به د خدای سره پیدا ستاسو الزام لګوی ایا تاسو نه پوهیږئ ایا دوی نه پوهیږي چه خدای پاک عالم دے

مَا یُسِرُّوْنَ وَمَا یُعْلِنُوْنَ ۝

په پټو د دوی باندے او ښکاره د دوی باندے

هر څوک چه د کوم شیز سره محبت لری دا غواړی چه په دے کښې نور خلق هم شریک شي تر لو صحابو عموماً او خوک نبي صلے الله علیه وسلم خصوصاً ځکه اسلام، قرآن، مسلمان، الله او د هغه د احکام منل محبوب ترین شیز کانړه شپه او ورځ په دے فکر او غم کښې وو چه څرنګ به د دے علاج په ذریعه دا مریضان جوړ شي او د الله او رسول سره به د خلقو حقیقي تعلق پیدا شي خدای پاك دے فکرمند او غمجن تر ټولګی نه د مریضانو حال ښکاره کوی چه د دنیا په مخ او خاصکر په مدینه منوره کښې دا سے زوړ مرضی د ریے درج نه رسیدلی د تیان او سلیمان وو چه هیڅوک کښې د ژوند امکان نه وو پاتے شوے دا مریضان اوسني نه وو بلکه د دوی پلرونو نیکونو د

موسیٰ علیہ السلام په شفاخانه کښې سره د داخلیږو او د هغه د حکیم منلو نه مخ صحت نه دو مونږ

نو د هغوی دقیان اولاد چه تاسخه ستاد دارو، د سکو د پاره شاحاضر نکی .. څرنګ امید کیدے شی

چه دوئ به جوړشی او په محبت الٰهی به سرشار شی۔ کددی پلرونو به چه موسیٰؑ حکیم نه تورات

واوریدے نو په مخ طیاره جوړه نسخه کښې به دوی خاورے خزلے کړے اول بدل به ئے کړه

اوبیا ئے به پوئیدہ چه دا په غوراو فکر سره جوړ تورات او په تکلیف سره مرتب شوے نسخه که

بدلکه شی نو په ځائے د فائدے به نقصان اوکی خو دا ئے طبیعت دوچه علاج په خپل حال پریښود

او داځے لاځه کوے چه په خپلے بے دوقفئ یاسره د پوھے په نادانئ به دوی د خپلو مکرونسخه فخ کا دو

اوموږ منافو نه به ئے وے چه چې ستاسو علاج دیر فائده مند دے دیرکن اره به د حضرت

د زمانے یهود یا نو حضرت نه وے چه چې ستاد را تلو په باره کښې خو په تورات کښې محکښې دیبا

شوے ده اومونږ خو به ستاسو د راتلو د پاره دعاګانے کولے په دے خبرو به دوئ د

خپلو ملګرو د طرف نه زورلےهم شو څو اخر د مسلمانانو سخه د خپل صداقت د پاره څه دیل

هم ضرور دی دو دیهود یانو عالمانو د زور نے وجه داوه چه که مسلمانان په دے خبر شی چه په

تورات کښې د حضرت په باره کښې محکښې دیبا شته نو بیا به د قیامت په ورځ مونږ خدای ته

څه جواب کوو کرکه کشان یهودیان مسلمانان خبر نه کی نو داخبره به پټه پاتے شی او صباله

به خدای هم مونږ نه نشی دیلے چه تاسو ولے قران او محمد او نه مانه اوبیا ئے نه پوهیږی چه

خدای د هرپټ او ښکاره نه باخبر دے

تاسو څه طمع امید ونه او د دنیا په جوند کښې از زو کان داجمه کړی او د حضرت

صلے اللہ علیہ وسلم د زمانے د مؤمنانو د امید ونو سره ئے کښې ے چه د دے دوارو به کور کښې

څومره مناسبت دے هغوی خو د سلیانو او د دق مریضانو په علاج هم سترې نه دو اومونږ د

توخې تو دے سرے، سرخکی، غوټ خکی، د علاج غم او طمع هم ...... نه لرو او کړ دا سے نه دی

نو د ستاير شوی ژوند روز نامچه اُڅوړئ چه تا سو په دے معامله کښ څومره مال، عزت

نصیحت، هجرت، تصنیف، تبلیغ کړے دے او مخکښ ستا سو څه خیال دے د مومنانو د طمع ذکر

یو خو د دے د پاره دے چه دا یهودیان اوس د دے قابل نه دی چه علاج قبول کی او مومنان

شی او بل د دے غرض د پاره چه خوبن طمع په غو طمعو بدلے شی د خلقو مسلمانیل مومنان

کیدل خوبن د ژوند مطلب او کوزی مونږ د دے د پاره هر ممکن کوشش او کو او کړ دا سے او نکو بلکه

خوبن طمع صرف مال دولت جاه د جلال، جائداد دی نو خوبن او د هغے تیرو مومنانو په مینځ کښ

به څه خاصه رشته نه دی بلکه د هغے صرف دنیاوی طمع خاوندان نو دی هغه به خوبن تعلقدار

شی اے خدایه خوبن په زړه کښ د صحیح مومنانو هسے طمع پیدا کړے. امین

وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ۝ فَوَيْلٌ

او بعض د دوی نه امیان دی چه په اسمانی کتاب نه پوهیږی او نه لری مګر تشے ارزوګانے او نه دی دوی مګر ګمان کوونکی پس عذاب د

لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

د پاره د هغه کسانو چه لیکی په لاس (د ګان) کتاب لیکی او بیا وائی چه دا لیکلے کتاب خدائی دے

لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ ۝

او غرض د دی چه د خلقو نه پیسے تک واخلی عذاب د دوی د پاره د هغه خپلو لیکلو په وجه او د هغه مال په وجه چه دوی ګټلے دے.

یهودیان مریضان موروثی روحانی مریضان وو حکیم خدای د دوی د دے طول مرض قصه شروع

کړیده د دوی د پیرو نو هغه نافرمانی د انعامات ناشکری د دوی ظاهر پرستئ، غلام طبیتی نا راستی

بیان شوے،

اوس کوم یهودیان خلق چه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ وو د هغوئ

دلته دوه قسمه بیانیږي او دا تقسیم یوازې په یهود یانو کښې نه وو- بلکه په هر یو قوم کښې هم دغه دوه قسمه خلق دي امیان او عالمان د کوم قوم امیان او عالمان چه دې درجې ته اورسي لکه د یهودیانو چه وو نو هغه ذلیل شي خوار شي ملک وطن پاتې نشي د قوتو او د ډرامو مستحق شي

امیان د خپلې ناپوهئ په وجه همیشه ظاهري خبرو ته کوري او یوازې په دې کښې پروت وي د خبرو منلو سره ځان د خداي نه د هر څه حقدار کړ حوي علم خو ورسره نه وي صرف خوش اعتقادي او د زړه وسوسې لوي د دې امیانو د بې دلیله..... خبرو تفصیل مخکښې راذکر شوې

کمزوري عالمان خلق چه امیان په کښې لږ تعداد په یوه لاره روان او دیني لوړوي د خپلې اسانتیا د پاره چه څوئیږ به امیان خلق ملازه هم کوي پیسې به هم راکوي د امیانو د پاره د هغوئ د لشو کمانونو او وسوسو د پاره په اسماني کتاب کښې مسئلې لتمول شروع کي او د خلقو نه یو خوا ته شاباسئ اخلي او بل خوا ته پیسې اخلي امیان د قوم څپې دي چه دوي هم بیکار شي او عالم زړه یاما زغه دي چه دوي هم ایمان فروش شي نو د دې انجام ویل دې تباهي ده هلاکت دې مایوس العلاج ده ذلت او خواري ده

ن د امیانو او خاص کر د پښتنو د امیانو حال او کوري کله د مغرب د جمهوریت د جنګونو، بې انصافو، او ضدونو نو ټکونو نه ډک یوځې دلته نهال کوي او کله د دینیانت د فلسفې دا هغه ناممکن العمل د عمر پرېږي شوې خبرې یه لیبنتون عوندې مجاهد قوم کښې رد ج بیدا کوي او هر یوه خپله وهمي خبره ورته د کلام الهي نه او یه ښکاري څوک عالم خو د مخالف شي سر ورله ماتوي. یا ئیکاټ ورسره کوي مخبر او سي ایي. ډې یې ثابتوي دغه وجه ده چه ارام طلبي عالمان ډیر نه ډیر د یو څه امامان وي د دې امیانو تائید کوي یو طرف ته په دوه درې جلسو کښې په شمولیت سره مولانا شي او بل طرف ته د ده د پیسو

خاطر هم ارشي امیان خو کرم نه دی ځو نکي عالمان دے خدای د قرآن په مطالبو پوہ کړي چه قرآن د هر نظام باطل دشمن دے په دے کښي وطني نظام باطل او اجنبي نظام باطل يو برابر دے که په مستقبل قريب کښي د نظام باطل چلونکے ہواړ هندوستانیان یا مسلمانان جوړيږي او په نظام کښي د قرآني نظام صحيح دخل نه وو لکه چه د جمهوري ملکونو عمل مونږ ته داخبره ښيي نو د امیانو سره د عالمانو شمولیت تر کومه حده قابل تعریف دے د دوی دغه اشتونه کوم چه د امیانو د خوش اعتقادو په ثبوت کښي بار بار راوړے شي. دا تر کومه پورے د عالم شان دے. په دے هر عالم له غور پکار دے۔

## علامه اقبالؒ

جلال پادشاهي هو که جمهوري تماشا هو
جدا هو دين سياست سے تو ره جاتي هے چنگيزي

په هندوستان کښي د علماء هغه تحریکونه او کوري چه د هغے نظیر د صحیح وطن علماء نشي ورکولے او په هغه عمل اوکړ. حضرت سید احمد شهیدؒ مولانا شاه اسمٰعیلؒ شهید په هندوستان کښي هغه سیاسي او د تنظیم جهاد نه ډک تحریک جوړ کړے وو چه د هغے عالمگیریت او داسے جامعیت بیا نه لیدلے شوے دی په هندوستان کښي د مذهب جوش، د سرفروشۍ جذبه، سیاسي بیداري پیدا کړے وه او مطلب جهاد او احیاء د خلافت وو، چنگیزي یا جمهوري ناپاک حکومت قاٸمول د دوی غرض نه وو په سنه ۱۲۴۲ھ کښي سرحدي قبیلو امیرانو خانانو، هندوستاني مجاهدینو، علماؤ او مشائخو بالاتفاق د ده په لاس کښي لاس ورکړے وو. دے امام وو او قاعده بیت المال

هندوستاني عالمان او د هغوی جهاد

دو د زکوٰة او عشر شرعی نظام وو. دوی لپشاور اغښتے وو با قاعده اسلامی حکومت

وو خو بعض خیانت گرا وغداران د داسے اسلامی نظام حکومت مخالف شو او په

سنه ۱۲۴۶ھ مطابق سنه ۱۸۳۰ء کښې سید صاحبؒ او شاه اسمٰعیل صاحبؒ په بالاکوټ

هزاره کښې شهیدان شو.

د علماؤ شان دا دے چه که مغربی تعلیم یافته دلندن او ماسکو نه متاثر دی

او د هغه ځائے غونډے قانون په هندوستان کښې قائمول غواړی نو عالمان دے دهغے

او مدینے سره خپل محبت ښکاره کی او د قرآن د نفاذ کوشش دِ کوی. امیا نو له دے

مسئلے نه را او باسی د علماؤ تبلیغی او جهادی کارنامے دِ خپل دستور العمل کړی بی ادبی

دِ معاف وی ځما خو یو عرض وو زیات به پوید رنګی پو هیږی.

وَقَالُوا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَعْدُودَةً ۚ قُلْ أَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللَّهِ عَهْدًا

او وائی دا یهودیان چه هرګز به مس نه کی مونږ له اور مګر یو څو ورځے په شمار او دا یه وزنه اے نبی چه ایا تاسو خدائے نه وعده اخستے

فَلَنْ يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ ۖ أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ۝ بَلَىٰ مَنْ

چه په هغے کښې خدای خلاف نه کوی او که په خدای باندے داسے دا سے خبری تړی چه تاسو په نه پوهیږی خبر په اصل کښې دا دَم

كَسَبَ سَيِّئَةً وَأَحَاطَتْ بِهِ خَطِيئَتُهُ فَأُولَٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ

چا بدی او کړه او ګناهونه ترچاپیره شو نو دا هر څوک چه دی دوی به په اور کښې وی او دوی به د همیشه د پاره وی

امیانو د ابدی عذاب نه د خلاصیږو د پاره د ځان نه یوه مسئله جوړه کړے ده

چه یهودیان د پیغمبرانو اولاد دے او د پیغمبرانو اولاد که ډیر ګناه ګار شی بت پرست شی

نو هم دوی به په دوزخ کښې د همیشه د پاره نه وی او که ډیر دی نو کومے ورځے چه

دوئ د سخی عبادت کړے وو ډیر نه ډیر به د دے په سزا کښې څه ورځے د جنت د

د [illegible] مسئله

داخلیږي وا و حقدار کیږي و دَ پاره او دَ ګناه نه دَ صفایي دَ پاره په دوزخ کښې وي

بیا به جنت ته ځي کو یا خاندان او نسل او دَ پیغمبرانو په دوي کښې جوړ بدیل دَ دوئ

په خیال کښې دَ عذاب نه دَ خلاصیدو ذریعه وه۔

قرآن شریف دَ دے مسئلے دیونکو ته امیان او بے دلیل خبرے کونکي وائی او بیان

کوي چه قانون قدرت داسے دے چه هر څوک پکښې په رب شي او یو بخښنه بے هم دَ ګناه

نه بچ نشي نو داسے خلق به دَ همیشه دَ پاره په دوزخ کښې وي، خاندانی معتبری او دَ

پیغمبری نسب دَ دوئ دَ نجات ذریعه نشي جوړیدے، دغه په عبادت سره شرک

او شه چه ظلم عظیم دے۔ دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دَ پیغمبری په نه منلو سره

بل ظلم او شه په عیسیٰ علیه السلام باندے چه کوم الزامات یهود یانو لګولي دي په مریم

علیها السلام چه کوم بهتانو نه دوئ ترلی دی داداسے ګناهونه دی چه دَ دوی په یو وینته

کښې پاک والے پاتے نه شه اخر به کوم قانون او په کوم دلیل به دوی دَ جنت دَ تلو حقدار

حقدار جوړیږي، دا صرف ارزوده او ګمان دے۔ یوه خبره دَ دوی دَ خلاصی کیدے

شي چه خدای ورسره څه لیکلے وعده بے قیده کړے دے چه څیرے یهود یانو که تا سو

هر څه چه کوی تا سو جنتیان یئ۔ نو دا یوه خبره ده۔ خو خدای پاک داسے وعده کله

کوی دَ هغه وعده خلاف قانون څرنګ کیدے شی نو که امیان یهود یان دا خبره کوی

چه مونږ سره دا دَ خدای وعده ده نو دا سراسر په خدایؐ الزام دے او دروغ دي

وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ أُولَٰئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ۝

او کوم خلقو چه ایمان راوړه او عملونه ښه ئے اوکړل نو دا کسان به جنتیان وي او دوی به همیشه په جنت کښې وي

او بد پرهیز کاری کوونکی، او دارو نه خوړونکی مریضان مری. علاج کوونکی او پرهیز کوونکی همیشه روغ جوړ او تن رست دی. که مونږ په دنیا کښې روزانه دا خبره وینو او مونږ د دینه انکار نه کو وچه روغ او ناروغ د قانون صحت د منلو نه منلو په وجه کیږی نو مونږ له د دینه هم انکار نه دی کول پکار، چه گناه گار او بې گناه د خدائی قانون په منلو جوړیږی او خه مومن کیږی او چه څوک د خدای پاک د قانون خلاف کوی نو په روحانی مرض کښې گرفتاریږی او چه د دې قانون تعمیل کوی نو روغ جوړ وی روحانی مریضان که د مرض علاج په روحانی کتاب کښې تلاش کی او په هغه عمل او کی، د ضرر نه ځبږ و نو نه پرهیز او کی نو بیا صحت موندے شی لیکن چه روح تر روح خلاف کوی او پرهیز نه کوی نو انجام به ئې روحانی مرګ او ابدی دوزخ وی، د دې مخالف چه څوک قانون الهی منی روحانی صحت به بیا موی دلته به هم روحانی خوشالی لری او په آخرت کښې به هم ابدی جنتی دی، روحانی خبرے څومره په روزانه ژوند کښې مونږ لیدے شو خو که مونږ روحانیاتو ته د کار شے او وے. خدایه! څومره روحانی ژوند طرف ته توجه پیدا کړے. آمین

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَ بَنِيٓ إِسْرَآئِيلَ لَا تَعْبُدُونَ إِلَّا ٱللَّهَ وَبِٱلْوَالِدَيْنِ

او یاد کړئ چه مونږ د بنی اسرائیلو نه د دې وعده واخسته چه تاسو به عبادت نه کوئ د خدای نه دې بغیر او مور و پلار سره به

إِحْسَانًا وَذِي ٱلْقُرْبَىٰ وَٱلْيَتَٰمَىٰ وَٱلْمَسَٰكِينِ وَقُولُوا۟ لِلنَّاسِ حُسْنًا وَ

ښه کوی - د خپلوانو یتیمانو مسکینانو سره هم او خلقو ته به خوږې خبرې کوئ او

أَقِيمُوا۟ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُوا۟ ٱلزَّكَوٰةَ ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِّنكُمْ وَأَنتُم مُّعْرِضُونَ ۝

مونځ به باقاعده ادوی زکوة به ورکوی خو بیا تاسو مخ واړوه او کړ زوږ کړی نږ ولتا شوځ او نه گرزوږ او ستاسو عادت د مخ نو کړولو دی

د ذاتي کمال سبب

دَ خدائی قانون دوه اصولی سبقونه دی اول خو هغه کارونه دی چه دَ هغې په عمل سره په عمل کونکی کښې خه اخلاق او ذاتی کمال پیدا کیږی دویم هغه چه کوم دَ خارجی جوندَ دَ اصلاح او دَ قومیت دَ قیام سبب وی په اول کښې دوه قسمه شاخونه دی یو دَ خدای تعظیم او لویې بیانول دی چه هغه په لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ کښې بیان شو چه بې دَ خدای نه چه هغه څوک خالق رازق او رب دے دَ بل چا مری نوب یعنی دَ بل چا قانون، رواج، خلاف شرع احکام مه منئ په دے سره دَ منعم حقیقی الله شکریه ادا شوه اوس دویم شاخ داده چه مجازی احسان کونکی هم څوک دَ احسان مستحق دی چه هغه څوک مور او پلار دی او دَ مور پلار په خاطر دَ مور په سلسله کښې خپلوان او دَ پلار په سلسله کښې خپلوان هم قابل دَ عزت دی او لیږ اړے دا نه بلکه دَ تمدنی جوند دَ پاره په یتیمانو، مسکینانو رحم او مهربانی کول هم څوک فرض دی که خاندانی یتیمان او مسکینان وی خو دوه خبرے دَ هغوی دَ امداد دَ پاره پیدا شوے او که غیر خاندانی وی نو دَ اسلامی خپلولۍ په وجه دَ دوی سره امداد ضروری دے۔

یتیم، هغه نابالغ دے چه پلار نه وی او مسکین هغه غریب دے چه دومره مال ورسره نه وی چه په هغې زکوٰة فرض کیږی که دے روغ وی او که بیمار او بیا یو دیر عام اخلاقی حکم دے چه دَ هر چا سره خوږے خبرے کوی هغوی له دنیوی او اخروی تعلیم ورکوی دنا کاره وکارونه نه په نرمۍ سره منع کوی۔ تر نو اخه چا نه مه نیسئ کوک لوکے مه جوړیږی اوس تفصیل شروع کیږی چه دَ خدای دَ عبادت کوم طریقې دی اول مونځ کول دی په دے کښې دَ خدای نه سوا الله هغه نه دَ خپلو گناهونو په باره کښې جړل او معافی غوښتل دا روحانی او بدنی عبادت دو ورپسې دَ مالی عبادت په باره کښې حکم دے چه مالدار خلق دے زکوٰة ورکوی دَ مال جړے دمنی ادم په زړه کښې خښ دی چه ترسو دے مال قربان نه کی نو دَ ده دا مونځونه دا سے معلومیږی چه دَ

اسانتیا او نه خرس په وجه کیږی او زکوٰة به هم یتیمانو، مسکینانو له ورکوی، مور پلار او
خپلوان پالل خو که هم پر یږدی نو دغه انسان اخلاقی او فطری خواهش دے د موسیٰ او زکوٰت په جزئیاتو
کښ به فرق وی اصولاً قول د دین خبرے یو شان وی، نو یهود یانو دا وعدے د موسیٰ
علیه السلام سره او کړے خو چه بو څو ورځے تیرے شوے نو خه کورو چه بنی خلق په دے
کلک پاتے شه او ډیر خلق نا فرمان شه او خدای پاک وائی چه یهودیان خاندانی هم
دغسے وعده خلاف را غلی دی. گویا حضرت صلے الله علیه وسلم ته یهودیانو یو
خاص د خلاف وعدگی مرض خو دے شی چه که دوی ستا سره وعده او کی او د هغے نه خلاف
او کی نو څه عجیبه خبره نه ده-

وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُوْنَ دِمَآءَكُمْ وَلَا تُخْرِجُوْنَ اَنْفُسَكُمْ

او یاد که هغه وخت چه مونږ لتاسو نه دا وعده اغستے وه چه تاسو به د یو بل وینے نه بهیوی او نه به خپل کسان دی خپلو

مِّنْ دِيَارِكُمْ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ۝ ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ

د وطن نه او باسئ نو تاسو بیا دے اقرار او کړو او تاسو اوس هم دا منئ بیا هم تاسو دغه وعده کونکو وجله

اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ

یو بل او کسان دی خپله به تاسو د وطن نه او خکه او تاسو به د ظالمانو امداد او کاوه په گناه او په ظلم کښ

وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ اَفَتُؤْمِنُوْنَ

او که ستاسو د اجاړ وطنه مظلومان به کرچا دښمن په لاس کښ راغله نو د خپلے قامی بے بخاطر به تاسو د دی به پیسو خلاص کړی او حالا د دوی د وطن نه ایستل حرام دی

بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا

نو تاسو بعض کتاب منئ او بعض نه منئ کرد ایسے کسانو سزا خو

خِزْيٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ

په دنیا کښ ذلت او رسوائی ده او په قیامت کښ به سخت عذاب ته بوتلے شی او خدای بے خبره

عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ز

ستاسو د عملونو نه دے وایه اصل کښې هغه کسان دی چه دنیوی ژوند یې واغستو او اخرت یې پریخوده

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝

پس کم به نه شی د دوئ نه عذاب او نه به د دوی مدد او کړے شی

دوی ته درې حکمونه وو اول دا چه قتل مه کوئ دویم دا چه کمزوری څوک ناحقه د وطن نه مه اوباسئ دریم دا چه د دوی د قوم څوک گرفتار شی نو په فدیه د پیسو دے راخلاص کړي ـ بنی اسرائیلو اول او دویم حکم نه مانه او د دریم حکم په منلو کښې به ډیر شوق سره حصه اغستونکی وو۔

په اصل کښې قصه داسې وه چه په مدینه کښې د ننه دوه قومونه وو یو اوس او بل خزرج وو، د دوی په کور کښې سخته دشمنی وه کله کله به دوکه جنگونه هم کول، دغسې د مدینې په اطرافو کښې د یهودو دوه قومونه اوسیدل یو بنی قریظه او بل بنی نضیر په دوی کښې د بنی قریظه و سره د اوس دوستی وه او د خزرج او د بنی نضیر دوستی وه او چنانچې کښې به هر یو دوست د خپل دوست ملګرتیا کوله او په هر لوبه چه مصیبت راغی نو ورسره به دوستان هم دریځ رشوا او په دے معامله کښې به دوی د خپلو دوستانو په قتل او شړولو کښې شریک وو۔ خو چه د بنی قریظه او بنی نضیر نه به څوک د اوس یا خزرج سره قید شو نو بیا به هر یهودی په بله ډله د سړي د خلاصی د پاره چنده کوله او دا یهودی به یې د خپلو دوستانو نه خلاصه و۔ او دا به یې ورته ویلې چه د یهودو دیت په دې وجه دا څوک نه فرض دی چه مونږ دوی له تاسو نه خلاص کړو او ستاسو د دوستی په لحاظ مونږ ستاسو سره د دوئ په قتل او شړلو کښې ستاسو ملګري یو۔

په دے الیتو نوکښی دریم قسم یعنی چه تمدنی (خاری) جوړند به خرنګ تیروی بیا نیړی - په خونریزی د کمزورو په شړون توب ادبیا په ے ظلم کښی د ظالم امد اد تمدنی جوړند خرابوی - د قومیت مړے په کمزورے شی اجتماعی طاقت په فنا شی مخالفان به پټا سو حمله اورشی او ستاسو د ملک به بادشاهان شی، تاسو به د دے خون خراجے په وجه محکومان او غلامان شئ ستا سو عزت او ستاسو مذهب به ستاسو د لاس نه لاړشی - یهود یانو خپل تمدن خراب کړ او د غه نتیجه شوه چه ن په ټیټ وطن کښی د اوسیدو د پاره ځائے نه مومی دا تمدنی جوړند که د یهودی خراب شو او دے په خوار ذلیل او غلام لامذهب درند ه شه نو دا قانون د مسلمان هم مخ کوی نه دو مسلمان چه خپل تمدن د دینه هم زیات خراب که نو خوار او ذلیل، د مغربیا نو نقال، د مشرکانو په مزدوری فخر کونکی اسلامی او افغانی عزت په بل خرسویکے جوړ شه - کومه رسوائی او ذلت دے چه ن مسلمان سخه نه سنکاری په مونږ کښی بعض خلق دا رسوائی او غلامی لیدے کول غواړی خو د دے مرض چه کوم سبب دے په هغے فکر نه کوی او ل هغه سبب په ځه علاج لرے کول پکار دی چه اخلاق پیدا شی او انفرادی اصلاح او شی، دینی او مذهبی تعلیم او شی د مسلمان د وینځه او کونجے حفاظت په یو بل واضح شی نو بیا به قتل خو قتل دے چه ترځ خبرے به نه وی او شړون توب به څرنګ په مسلمان دالی کښی او شی خو مونږ د لیونی لیشان د ډاکټر او حکیم نه نختو د اصلی علاج په حقیقت نه پو هیږو د دارو بوتلے ما تو د هسپتال په کوټو اوړ لکوو - د حکیم نه پوزه او غوګ پریکو - وایه په ے لفرت پیدا کولو به ته جوړ شے؟ ستا نا پوهه کنډک که شه عارضی حکومت داخلی او بیا په جاره کښی پچپلو کښی جنګونه شروع کی نو شرمخ ته به د مرګ هم ضرورت پاتے نه شی غتے غمے مرے درنګے به د شر مخا نو خوراک شی د غلامئ نه کوکه کونکے را منا متوکے د دینه خبر دے چه د دوئی په برکت غلامان په خپلو کښی دوئ تقسیم کړه کله د هنود

تمدنی حالت او مذهبی تعلیم

ملګری او کله د پیرنګی ملګری دوی جوړ شو ځوک جاپان را ولی او ځوک روس سره لوزونه
کوی د اد غلامۍ نه خلاصول دی که مالک بدلول دی د خدای د پاره قران قول ټکے
ټکے او ځوړی نیچیله په عمل کوی د کلو د باندو، د خاریو، په چړونو او محلو کښې د خلقو دینی
مذهبی د قول قران د منلو انتظام او کئی. حله به د رسوایئ ذلت او غلامۍ نه خلاص
شی داستاسو ځوندے کوشش نو ځیو دیان هم کوی چه امریکے له ییسے قرض ورکی دوستی
ورسره پیدا کی بیا چه څه روزے تیرے شی هغوی ے د وطن نه او شړی وایی ژر کے شئ مودار
د خدای حکم نه منونکو ځوبږ سخته ستاسو ځائے لشته. بیا په فلسطین کښې د بل دوست
په امداد د زور د وطن خواهش او کی خو عرب ورته نیغ شی او بے وی ملک تنګ کی

وا په بعض قران عمل کول او په بعض عمل نه کول د دنیا پرستو عادت دے او
دنیا پرست به په دے طریقه په دنیا او اخرت کښې د ذلت او خوارئ نه د چا په مدت
ځان خلاص نه کی د د دی مد د کار هم بادشاه نشی جوړیدے یوه بادشاهی او حکوف
یوه بادشاهی ده چه د الله بادشاهی ده د دے رسوایی د لرے کولو اختیار لری او
د هغے علاج قول قران منل دی

## قید ونه او د هغے حقیقت

د یهودیانو اعمال او ځموږ خو یو نه په کور کښې څه ډیر مناسبت لری موږ نیچیله خو
خپل خلق وهو د هغوی مال خورو په هغوی بیګار نه کو، په سود سودا بیا دری تاله
کوو د خپلو کنډه رو نه دوی شړو په دے معامله کښې ځموږ د عنهو عنهو مالدارانو او
غریبانو سم خکاره څو لګی دی، ځوک بے معاش کوو ځوک بے ګناه مجرمان کوو ځوک
ځوک مخبران ښکاره کوو خوراک سکاک په بند د و سلام کلام ورسره نه کوو خو سره د دے

په جیلخانو کښې قیدیانو

څنګه دا زړه ده چه ځوانان دا واجب القتل شړولی شی د ملی چا غلامان نه دی یا دا مطلب چه دوی د کم غلام کوی، که مزدوری کوی نو بیا ئے ځوانان د کوی چه په موږ دوی قتل روا دے که دوی مال خوړل روا دی، د لور خور په واده کولو کښې موږ له تړ روپۍ اخستل روا دی نو که دوی دا د بادشاهۍ دا داسې پوهے ځوانان سخته نه وی عقل خشے دے عقلمند د ځپلو عزیزانو پوهه خو قتګاروند خپل ځان په ټیخ کښې او په سیره کښې پټ ساتی او بل ورته منکاره کوی په دے سلسله کښې چه څوک قید شی نو کوم یاغی غازی شی مجاهد شی لیډر شی، مولانا شی، سیاست دان شی، علامه شی. دے هم وے هم پخپل قید لوړ کوی او خلق هم د ده ثنا صفت کوی چه ده دومره قید تیر که او چه بیا سوک دوی را خلاص کړی نو د هغې وزارت او اقتدار تعریف کیږی کو یا قید د نه او د قید نه خلاصے ځوانان د جهاد اخری منزل دے او د قید نه په رهایی کښې یا په قید تیرولو کښې د یهود یا نورے د یهودیت په شان دهغی ستائی والی حب به کار کوی او بس. که د قیدی کورنۍ ژوند او کوری د جیل خانے ژوند او کوری چه باهر تشریف راوړی او د ده کارستانی او کوری نو پوی به شی چه د داسے سری قید څومره قابل تعریف دے او په خلاصی کښې ئے څومره ثواب دے که بالفرض د قید نه رهائی قابل تعریف هم شی نو د دینه علاوه نورے قرانی، اخلاقی، اسلامی او مذهبی خبرے څومره مطلب شی؟ او که نه شی نو لکه چه دا حقیقت دے نو بیا ئے بعض کتاب منلو او په بعض کتاب نه منلو باندے د حقیقی خلاصے نه د خلاصیدلو امید لکوئ خدای دے موږ په دے پوهه کړی چه صرف قید و نه ځوانان د جهاد اخری منزل نه دے په کورنۍ ژوند کښې د شیطان د قید نه خلاصے په عاجز المظلوم نه کول د هغوی نه او د هغوی د مال دولت عزت نه جائزه فائده اخستل پکار دی چه په قول قران عمل او شی نو بیا به د شیطان او د ظالم بادشاه نه خلاصے

اوشی کنی نو مالکان بہ بدل شی او غلامی بہ پاتے شی

وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى

پہ تحقیق سرہ (ستاسو د راهنمائی د پارہ) موږ موسیٰ لہ کتاب ورکړے وو او بیا پرلہ پسے رسولان را تللہ او موږ د مریم

ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۭ اَفَكُلَّمَا جَاۗءَكُمْ رَسُوْلٌۢ

زوی عیسیٰ لہ روښانہ نخے ورکړے او مختار مو کړ پہ روح القدس سرہ ایا دا ستاسو عادت دے چہ هر کلہ تاسو تہ رسول

بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ۚ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ ۡ وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ۝

ستا د خواهش نہ خلاف و بیا او کی نو تاسو یو تړ کړے د دروغ جن کوی او بل ته کړے د وژنی

وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ۭ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ ۝

او وے بہ دوی چہ زمونږ زړونو نو غلا فونہ دی بلکہ د دوی د کفر په وجه پرے ی د خدای لعنت دے پس لږ دی کبن بمار او روی دی

پہ هر انسان کبن یو عملی قوت دے او بل علمی طاقت دے پہ تیرو ایتو نو کبن د خدای منل او د هغہ احکام منل د دے دوو قسمو نو تفصیل وو پہ دے ایتو نو کبن بیان کیږی چہ د بنی اسرائیلو عملی او علمی دوا ړہ طاقتو نہ فنا شو یدی او سرہ د دے چہ تپوس تړ او کړے نو وائی چہ موږ د خدای دوستان یو سبب یو ځو ورځے بہ دوزخ کبن یو بیا بہ همیشہ پہ جنت کبن یو او حال دا دے چہ د خپل خاندان د پیغمبرا نو سرہ د دوی دا سلوک وو چہ څوک بہ دوی دروغجن کول او څوک بہ دوی وژلہ د دا سے خلقو نہ د حضرت محمد صلی اللّٰہ علیہ وسلم پہ بارہ کبن چہ څہ گستاخی کیږی نو دا څو څہ د ومرہ عجیبہ خبرہ نہ دہ د موسیٰ علیہ السلام تورات د وی نہ ما نہ بیا دا سلسلہ د پیغمبری بندہ نہ وہ، ډیر پیغمبران د تورات پہ وعظ کبن را غلہ او د بنی اسرائیلو پخاندان کبن اٰخری نبی حضرت عیسیٰ علیہ السلام راغی د عیسیٰ علیہ السلام سرہ کافی ښکارہ معجزے

دے خوښی اسرائیلو د خپلے ازلی بد بختئ په وجه د دہ سرہ هم هغه اوکړه لکه چه څرنګ باغیان او سرکشان کوی چه د دہ تکذیب اوکړه او په خپل خیال دے قتل کړه، ګویا دا روحانی مریضان نه حکیم منی او نه یے علاج منی نو د دوی د روغ والی څه امکان پاتے نشه،

د روح القدس نه مراد جبرائیل[۴] دے د دے د هغه سخه را تلونکے وو نو چونکه د حضرت عیسیٰ[۴] جوند ډیر زیات په خطره کښی وو نو د اول نه د عیسیٰ علیه السلام حفاظت جسمانی او وحی روحانی د واړه په جبرائیل علیه السلام کول، دائمے تائید وو.

د خپلو پیغمبرانو سره د دوی حالت بیان شه او س چه یهود یانو کوم سلوک د حضرت صلی الله علیه وسلم سره کوی هغه بیانیږی قرآن شریف د دوی هغه سرکشی او د پیغمبرانو نه نافرمانی بیان کړے او دا سے مضامین ښکاره کړه چه د یهود یانو سخه د دے جواب نه وو نو بیا یے دے چه مونږ قرآن څکه نه منو چه څونږ په زړونو کښی تورات ډک پروت دے او د پا سه په سم غلاف دے د بل وعظ نصیحت د پاره په کښی ځائے نشته، په اصل کښی دوی د تورات سره محبت ښکاره کوی او ګویا د بل کتاب حاجت نه لری خدای پاک وائی چه د تورات سره د دوی مینه هم ښکاره ده او د دوی د خاندانی پیغمبرانو چه دوی کوم عزت کړے دے هغه هم معلوم دے دوی که قرآن نه منی نو دا ئے یو وجه چه د دوی په زړونو باندے زنګونه دی په دوی د خدای لعنت دے په دے کښی د دوی د بد عملو په وجه د قبولیت ماده نه ده پاتے شوے او په دے کښی متوڅکی لګیدی۔

وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ وَكَانُوْا

او هر کله چه راغے د دوی سخه قرآن د طرف د خدای نه چه تصدیق کاروو د هغے کتابونو چه د دوی سخه وو او د دے یهود یانو

مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ فَلَعْنَةُ

پیس لعنت | به د مخه ۴ په نامه په کافرانو بر ے کاوو توچه هغه بنی محمد راغے او دوی اوپیژندو چه دا هغه دے نو دوی ترا انکار اوکړه

اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ○ بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ

د خدای په کافرانو باندے، بد دے هغه څیز چه خرڅ کړه دوی پدے باندے نفسونه خپل (هغه) چه کفر اوکړه په (انکار ئي) په

اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ

د بغاوت چه ولے خدای نازل کړی کتاب په خپله خوښه په چا بندګانو باندے پس کرځیدل راشو دوی

بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ۚ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ○

په غوسه علاوه غوسه او د پاره د کافرانو عذاب سپکونکے دے.

دا یوه تاریخي قصه ده، بخت نصر چه شام او بیت المقدس تباه کړه او بني اسرائیلو ته د عربو نه بل ځائے د امن بیا نه مونده، نو عربو ته یے هجرت اوکړه د یهودو عالمانو ته معلوم وه چه آخري خاتم النبیین به په ذات النخل د کجورو په ملک کښې پیدا کیږي او بیا به مدینے ته هجرت کوي دوی چه راتله نو یثرب یعني مدینے ته راغله دلته ئے موده خودوئ ډیر پریشان سره او سیدل خو پدے کښې دے عرب اولاد، اوس، خزرج چه د ملک سبا او سیدونکي وو مدینے ته راغله او په یهودیانو غالب شو چه یهودیان مظلومان او کمزوري شو نو دوئ به مجبور راداسے دعا کوله چه "اے خدایه د آخري نبي په امداد مونږ د دے کافرانو نه خلاص کړے کافرانو به پدے حیرانتیا کوله چه داسے آخري نبي څوک دے؟ نو یهودیانو به د دے آخري نبي علامے ورته ښکاره کړے، سل کاله د جنګونو وو د یثرب اولادهم دوه ډلے شه اوس او خزرج او د یهودو هم دوه ډلے شوے بني نضیر او بني قریظه چه حضرت مدینے ته هجرت کاوه نو پنځه غدرو څو کښې د اوس او د خزرج یو لوئے جنګ اوشه چه د هغے نوم یوم البعاث وو، یعني د قیامت ورځ، حضرت صلی الله علیه وسلم چه د هجرت نه پس د دوی سره خبرے اوکړے نو اوس، او خزرج، مسلمانان شو او یهودیان مخالف وو، اوس، او خزرج انصار جوړ شو، د دے

انصارو به دے یهود یانو ته وے چه داخو ستا سو هغه نبی دے چه تاسو به ددہ د راتلو د پاره دعاگانے کولے او س یئے تاسو لے نه منی نو دوی به وے چه داهغه نه دے او به اصل کښں خبره داوه چه په عربو باندے ددوی دا دومره لوے اخری نبی سو د نه وو د النعمت او فضل ددوی په خپل خاندان سو د وو دے یهود یانو یو خو خپل نبیان نه منل او بل دا چه حضرت محمد صلے الله علیه وسلم هم او نه مانه ددے کفر په وجه به دوی له هغه عذاب ورکیدے شی په کوم کښں چه ددوی ذلت غرض دے دجنت د تلو د پاره صفائی نه ده، دائمی ذلت امیز عذاب دے چه د کافرانو د پاره به وی.

وإذا قيل لهم آمنوا بما أنزل الله قالوا نؤمن بما أنزل علينا ويكفرون

او چه اوویلے شی دوی ته چه ایمان راوړی په هغه قرآن چه نازل شوے د خدای نو دوی وائی چه مونږ خو خپل کتاب منو او دوی نه

بما وراءه وهو الحق مصدقا لما معهم قل فلم تقتلون أنبياء

سوا نه منو حال دا دے چه قرآن ددوی د کتاب تصدیق کوی او حق دے ورته او وایه (محمد) چه نو تاسو ولے قتلولی پیغمبران د خدای

الله من قبل إن كنتم مؤمنين ○

که تاسو مومنان وئ

دا د یهود و یوه بهانه وه چه مونږ خو تورات منو، نورے کتاب قرآن څله اومنو، خدای پاک ددے عذر دوه جواب کوی یو خو دا چه په قرآن او تورات کښں اختلاف نشته دین خو د ادم نه تر محمد پورے یو دے که څه ئې فروعی کے زیاتے وی نو دا به وی اصولاً دین یو دے- نو که تورات منئ نو قرآن به ضرور منئ بله دا چه تاسو تورات هم نه منئ ځکه چه په تورات کښں خو د پیغمبرانو د عزت حکم دے او تاسو هغه وجله نو تاسو تورات څرنګه اُمانه پس ثابته شوه چه تاسو تورات نه منئ او نه قرآن منئ- دا وانه ت ددوی د پلارانو وو خو د حضرت د

یهود یان په دے خبره خوشاله وو، ایمان راوړل دوئ تش د ژبے اقرار ته وئے چه موږ توراة منو یا انجیل منو او عمل دوی د ایمان د پاره ضروری نه گانړه نو د لته خدای تعالیٰ د ایمان بالتورات حقیقت ښکاره کوی چه تش ز بانی ایمان ایمان نه دے بلکه عمل په توراة شریف ضروری دے ۔

وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى بِالْبَیِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ

او یقینا موسیٰ تاسو ته ښکاره نخے راوړے وے بیا تاسو سخے په خدائي ونیولے ورپسے دده او تاسو ظالمان یئ

وَاِذْ اَخَذْنَا مِیْثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ خُذُوْا مَاۤ اٰتَیْنٰكُمْ

او په هغه وخت کښ چه واخسته موږ وعده لتا سو نه او پورته مو کړ پاسو طور غر چه ونیسیٔ هغه کتاب چه موږ تاسو درکړے

بِقُوَّةٍ وَّاسْمَعُوْا قَالُوْا سَمِعْنَا وَعَصَیْنَا وَاُشْرِبُوْا فِیْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ

کلک او واورئ نو او وے دوی چه واوریده موږ او نافرمانی اوکړه موږ، او سکو لے شو وو په زړونو د دوی کښ محبت د سخی

بِكُفْرِهِمْ قُلْ بِئْسَمَا یَاْمُرُكُمْ بِهٖۤ اِیْمَانُكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ۝

په سبب کفر او وایه ورته اے محمد چه بد دے هغه شی چه حکم کوی تاسو ته ایمان ستاسو که تاسو ایمان اریئ

د یهودو د طرف نه دا عذر کیدے شه چه موږ که پیغبران وجلی دی نو موږ د هغوئ نه مخے نه وے لیدلے په دے وجه د دے عذر جواب کیږی چه موسیٰ علیه السلام تاسو ته ډیر معجزے خولے وے نو پکار دا وو چه تاسو د واحد خدای عبادت کولے خو تاسو د واحد خدای په ځائے، هیله، د سخی عبادت شروع که او چه ستاسو اصلاح د طور د غره په اچتولو اوشوه نو تاسو په ظاهر د غه د ډیرے خو ایمان راوړه لیکن په زړه کښ تاسو انکار کاووو او د انکار وجه د سخی محبت وو د غه ستاسو هغه په توراة ایمان وو تاسو به د قرآن نه ځان خلاصوی آیا ایمان د یته وائی ؟ دا قصه هم د حضرت صلے الله علیه وسلم

دَ زمانے یهود یانو ته دَدے دَ پاره بیانیګی چه اَلْوَلَدُ سِرٌّ لِاَبِیْهِ چه دَ پلار انوم داحال وو ستاسو

غرمانی او انکار عادت دے۔

قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً مِّنْ دُوْنِ النَّاسِ

ووایه ته محمده که دَاٰخرت خوشالی یوازے ستاسو دَ پاره وی او نور خلق محروم وی

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ۝ وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ

نو دَ مرګ خواهش اوکئ که تاسو رشتني یئ۔ او هرګز به دوی دَ مرګ خواهش او نه کی دَ وجے دَ عملونو بد و خپلو نه

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝ وَلَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ ۚ وَمِنَ

او خدای عالم دے په ظالمانو باندے او خامخا به ته دوی په جوند دنیا حریصان بیا موی او بعض

الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ ۚ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ

مشرکان خو دا خواهش لری چه کاش دوی ځ زر کلنی وی۔ او حال دا دے چه په زر کلنی به دوی دَ

الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ۝

عذاب نه خلاص نه شی او خدای بینا دے په عملونو دَ دوی باندے

یهودیان پخپله لفظی زبانی ایماندار ی، په خاندان کښں په ډیرو پیغمبرانو را تلو ډیر ناز کونکی
وو او دوی دا ضرورت نه ګانړه چه ګنے دوی له سوا دَ دوی دَ یهودیت نه په قرآن شریف
ایمان راوړل ګنے هم ضروری دی په ے اَبئونو کښں دوی ته خو دے شی چه هر کله تاسو
ځان ته نیکان وایئ نو ګو یا دَ آخرت ټولے خوشالئ ستاسو دَ پاره شوے او دَ آخرت
خوشالی به هله وی چه دا دنیوی جوند خلاص شی نو راځئ چه مباهله اوکو یعنے داسے او وایو
چه که یهود په حقه وی نو دوی دِ جوندی پاتے شی او که حضرتؐ په حق وی نو حضرتؐ دے
جوندے پاتے شی یهودیانو مهلت او غوښته او په کور کښں ئے جرګه اوکړه چه مونږ په

ناحقه یو او یقیني دا چه مونږ به په دے مباهله کښې مړه شو او د دنیا دا خوږ ژوند به

را نه پاتے شي په دے وجه هغوی مباهله او نکړه بلکه دا ورته معلومه وه چه یو خو به مړه شو

او بل مونږ کوم خه کار و نه کړي دي چه کېنے پس د مرګ نه به مونږ پرے خوشاله شو خو عذاب

به وي او مونږ به یو، نو روی د مرګ سوال په دے وجه هم نه کاوه - د یهودیانو او مشرکانو

حرص دے درجے ته رسیدلے وو چه دوی به وے چه ارمان دے که خونږ عمر زر کاله وے چه

په ژوند کښې خو به د عذاب نه خلاص یو حال دا دے چه دیر عمر باندے څوک د

عذاب نه نه خلاصیږی -

د مرګ سوال جائز نه دے خو څوک چه د آخرت شوق لری یا د ایمان د حفاظت

سوال کوی نو دا جائز دی نو یهود یانو نه د مرګ سوال کولو د پاره ویلے شی چه د آخرت

رضا حاصله کړی په یهودو دا سے رعب وو چه دا کلمه ئے د خولے نه نه او نه ویسته چه هغه

نه په دے لفظ دیلو سره مړه شو نو د حضرت صلے الله علیه وسلم یهودیانو د الفاظو

په ژبه اُنشو ویلے . دا هم یوه معجزه ده -

وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ مِّنَ

او هر کله چه د دوی سره پیغمبر محمد راغے د خدای د طرف نه چه تصدیق کاوو د دوی د کتابونو نو اوغورزولو یو ټولګی د

الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ كِتَابَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُورِهِمْ كَأَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ ۝

کتابیانو د خدای کتاب د رسترو د شاګا نو خپلو نه (یعنی عمل او نه که) ګویا دوی بالکل علم نه لری

وَاتَّبَعُوا مَا تَتْلُوا الشَّيَاطِينُ عَلَىٰ مُلْكِ سُلَيْمَانَ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمَانُ

دوی تابعداری اوکړه د هغے د رو غو چه شیطانانو سحر وو په بادشاهی د سلیمان کښې او حالانکه سلیمان (پیغمبر) دا عمل کونکے نه وو

وَلَٰكِنَّ الشَّيَاطِينَ كَفَرُوا يُعَلِّمُونَ النَّاسَ السِّحْرَ وَمَآ أُنزِلَ عَلَى

ځکه چه دا کفر وو خو شیطانان کافران وو چه خلقو ته ئے جادو خو او د هغے خبرو تابعداری به ئے کوله چه په

الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوتَ وَمَارُوتَ ۚ وَمَا يُعَلِّمَانِ مِنْ أَحَدٍ حَتَّىٰ يَقُولَا

دوو ملائکو په بابل کښې نازل شوے وے چه یو هاروت او بل ماروت وو او دے ملائکو به هیچا ته جادو نه خودو ترڅو چه ورته به ئے اودے

إِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۖ فَيَتَعَلَّمُونَ مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُونَ بِهِ بَيْنَ الْمَرْءِ

چه موږ وجود هم د امتحان دے نو اے چه ناسوکا فران شې پس زده به کړه دوی هغه جادو چه ورځنې ئے خاوند په مینځ کښې

وَزَوْجِهِ ۚ وَمَا هُمْ بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللَّهِ ۚ وَيَتَعَلَّمُونَ

د ښځې کړ پاره وو او حال دا دے چه جادو به ئے د خدائ د حکم نه ضرر رسونکے نه وو ارزده کړلو به دوی

مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ۚ وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ

هغه جادو چه ضرر رسونکے دوی ته او نفع ئے نه رسوله او دوی پوهه وو چه جادو زده کړو نو په اخرت کښې به ئے هیڅ

مِنْ خَلَاقٍ ۚ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهِ أَنْفُسَهُمْ ۚ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ۝ وَلَوْ أَنَّهُمْ

برخه نه وی او بیشکه بد دے هغه شے چه په هغې کښې دوی ځېل ځان ورکوی ارمان دے چه دوی پوهیدے او که دوی

آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ خَيْرٌ ۖ لَوْ كَانُوا يَعْلَمُونَ ۝

ایمان راوړے وے او خدا پرستی ئې کړې وے نو د خدای سخی به دوی ته بدل رسونکے وے خو که دوی عقل لری

په یوه زمانه کښې په بابل کښې نوم بنیار کښې د جادو ډیر زور وو او خلق په معجزه او سحر کښې شکیان شوی وو او دغه وجه وه چه جادوګر په خلقو کښې ډیر اتیاریان وو او د دوی خبره به خلقو منله، خدای پاک د پیغمبر او د ساحر، د جادو او د معجزې په مینځ کښې د فرق د پاره په بابل کښې یو دوه ملائکې رااولیږلے چه دوی خلقو ته د جادو بدی بیان کړی او خلق د جادو نه خلاص کی، د دوی مثال د هغه عالم ایشان شه لکه چه جاهلانو ته وائی چه چوری دا شے د کفر کلمے مه وایئ، مثلاً چه دوزخ م قبول دے خو چه ازادی م بیاموندے" په دے کلمات کښې باندے اصولی او فروعی بحث دا عالم ښه دے خاطر کوی چه

د هاروت ماروت قصه

داسے کلمے نه وائی دغسے ملائکو خلقو ته د جادو اصولی او فروعی خبرے او ښودے چه خیال کوئ جادو زده نه کئ، په ے عمل او نه کئ خلقو ته چه دا معلوم شوه چه دا ملائکے خو د جادو لپاره ښکاره کوی نو دوی ته به جادو ورزی ځکه به د جادو بدی وائی نو رازئ چه جادو ته پدے بهانه زده کو چه مونږ ستاسو نه جادو ځکه زده کو چه د جادو او د معجزو په مینځ کښ مونږ فرق اوکو. ملائکو به ورته په دے نیت دا خبره او خوره چه جادوګر په جادو سره یوه داخبره کوی چه د ځزے خاوند په مینځ کښ جدائی راولی خو هغوی جدائی نه شی راوستے ځکه چه مختار حقیقی خو خدائے دے

د دے ملائکو د وعظ یو بل مثال اوګورئ که ن روځ یو سړے یو فلسفی سخنه لاړ شی او د هغه نوے یازره فلسفه پدے بهانه زده کړی چه په اسلام څرک اعتراض کوی نوزه به د هغے جواب کوم اوس دا عالم دے سړی ته نصیحت کوی چه ګوره وروره فلسفه مه زده کوه هسے نه چه ته پکښ خراب شے دا داسے علم دے چه په دے کښ ګم خلق د نقصان نه بچ کیږی خو دا سړے وعده اوکی او تاسفی ورته فلسفه او وائی اوس که دے طالب د فلسفے نه په ځانئ د نائده نقصان اوکه نو پدے کښ د معلم څه جرم دے هغه خو پدے نیت تعلیم ورکړے وو چه د شکونو نه خلاص شی.

دغسے ملائکو به دغ زده کونکو ته اووے چه مونږ دا علم ځکه زده کړے دے چه تاسو ته دا ښکاره کو چه معجزه یو قابل تعریف شے دے د یو صالح پیغمبر نه په حقیقت کښ خلاف عادت څه فائده مند کارصادریږی او جادو خو د نظر فرق وی چل ول وی څه مشاقی دی د وظیفو او محنتونو اثروی بے مطلبه عوندے کاروی که تاسو دا زده کړئ نو پټاسو کښ

دَ صبر طاقت نشته. پتا سو شیطان دیر غالب دے. شرارت ته انسانی طبیعتونه دیر مائل دی نو تا سو به په خلقو دَ دٔ فائدے چه معجزه او منځ او دَ جادو نه پیچ شئ نقصان او کئی او شرارت به په جادو کولو شروع کئی خو دوی به وعده او کړه او ملائکو به دوی ته تعلیم ورکړ په دے کښې به اکثر خو دَ سحر او معجزے په فرق پوهه شو خو بعض به خلاف وعدگی او کړه او دَ دنیا شهرت یا عزت به یے په خلاف عادت کار کولو سره دَ خلقو نه حاصل کړه لوی مقبل به شو او دَ آخرت هغه خدائی رضا به دوی پر لیښوده دا دیره بے عقلی وه چه پس عند زمانه کښې کیده او هیود یان په دے کښې پیش پیش او دَ تورات نه دو گرداں وو. او په اصل کښې دا هم هغه خلق وو چه دَ سلیمان علیه السلام په بادشاهئ کښې به یے هم دا شیطانی جادو کاوو او چه سلیمان علیه السلام وفات شه نو بیا یے دکته دَ جادو نسبت او کړه چه دا دَ سلیمان علیه السلام بادشاهی په جادو چلیده. حال دا وو چه سلیمان پیغمبر وو او جادو کول کفر وو او یو پیغمبر څرنګ کفر کولے شی

خلاصه دا ده چه دَ یهود یانو شیطانی کار خرخ وو خو تورات او موسیٰ یا قرآن او محمد صلے الله علیه وسلم سره ئے نه لګید ه

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقُولُوا رَاعِنَا وَقُولُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوا وَلِلْكَافِرِينَ

اے هغه خلقو چه تاسو ایمان راوړے دے تاسو لفظ دَ راعنا مه وایئ بلکه لفظ دَ انظرنا وایئ او اورئ او دَ کافرانو

عَذَابٌ أَلِيمٌ مَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَلَا الْمُشْرِكِينَ أَنْ يُنَزَّلَ

عذاب دردناک دے نه غواړی کافران دَ اهل کتاب نه او نه مشرکان چه پتا سو نازل شی

عَلَيْكُمْ مِنْ خَيْرٍ مِنْ رَبِّكُمْ وَاللَّهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ

خه خبره له طرف دَ خدای نه او خدای خاص کوی په مهربانئ خپله سره هغه څوک چه اُو غواړی او الله ښاوند دَ لوئے فضل دے

مسلمانان ته دے قسم یو اخلاقی نکته چینو یهود یا نو نه خدای منع کوی او د دوی مجلسی شرارت ورته ښکاره کوی چه یهود یان د حضرت په مجلس کښې هم د خپل شرارت نه نه منع کیږی په مجلس کښې به ئے دا کلمه ویله چه یا رسول "راعِنَا" په ظاهر کښې خو د دے معنی دا ده چه رسول لږ موږ ته وادا وکه، ځموږ رعایت اوکه دا خبره دا نه بیا اووایه خو په اصل کښې دوی به په دے لفظ کښې د حضرت صلے الله علیه وسلم بے عزتی کوله چه د دے نه به د دوی مطلب "راعی" شپنکے اغشته چه مسلمانان به د دے پو یه شو نو دوی یهودو ته دا خبره اوویله چه تاسو دا "راعینا" غوندے لفظ ولے وایئ نو یهودو جواب اوکه چه دا لفظ خو تاسو هم وایئ نو که موږ اووے نو کومه بده خبره ده په دے وجه خدای پاك مسلمانان د دے نه منع کوی چه تاسو د یهودو سره په داسے لفظونو ویلو کښې مشابهت مکوی چه په هغے کښې د رسول د بے عزتی احتمال وی بلکه صفا د "اُنْظُرْنَا" لفظ وایئ چه د دے هم معنی سوا د انتظار نه نشته.

او بیا خدای پاك مسلمانانو ته د مشرکانو او د اهل کتابو دشمنی ښکاره کوی چه د دوی تابعداری ځکه مکوئ چه دوئ دا نه غواړی چه تاسو ته د خیرا ورسی، پیغمبری یو لوئے خیر وو دا هم د دوی پتاسو ندی سود د غسے بل هر قسم خیر دوی پتاسو نه سود کوی نو د داسے بے سوده قوم په تابعداری کښې تاسو غلطی مه کوی او د خیر مالك خدای دے د هغه خوخه ده چه چا له خیر ورکوی نو هغه له خیر ورکوی.......... هغه دیر د لوئے فضل خاوند دے

مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا اَوْ مِثْلِهَا اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ

کوم ائیت چه موږ منسوخ کو یا هیر کو موږ دا ائیت د خلقو د زړه نو نه نو راتلل ا وکو موږ په عوض د هغے ښه یا مثل د دے نه نو پوهیږے چه

اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ۞ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

خدای په هر څیز قادر دے اے نه پوهیږے ته چه بے شکه د الله د پاره بادشاهی د اسمانونو

# وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِیٍّ وَّلَا نَصِیْرٍ ۝

او زمکې ده او ستاسو د پاره بې د الله نه څوک دوست او مددګار نشته

یهود یانو به د هر قسم دشمنئ او شرارت نه کار اغستلو دوی به مسلمانانو ته کله کله وے چه ستاسو عجیبه وحی او شریعت دے حٔکه تورات هم وحی او شریعت وو نو هغه قرآن منسوخ کړ دے څه مطلب؟ د خدای حکمونه او شریعت خو یو شان نه بدلیږی، ونګی پکار دے او دا ځائے لاځه کوے چه په قرآن کښ هم نسخ شته، خدای چه یو آیت منسوخ کوی نو اول به ئے نه دا لیدو نو خدای پاک د دے اعتراضو نو جواب کوی یو خو دا چه دا اعتراضات په حسد مبنی دی او هغه دا چه دا پیغمبری حٔکه د خاندان نه اسمٰعیلی خاندان ته ولے لاړه او بل جواب دا دے چه که مونږ یو توراتی حکم یا قرآنی حکم منسوخ کوو یا ئے روستے کوو نو په دے کښ حٔکه غرض د بندګانو بهتری وی مونږ د منسوخ حکم په نسبت څه یا د هغے په شان آسان بل حکم راولیږو دا تبدیلئ د خدای د بے علمئ په وجه نه دی بلکه انسان یو مریض دے حکیم خدای د دے مریض حال ته ګوری او د ده د حالاتُ مناسب په نسخه کښ تبدیلی کوی نسخ په اعتقادیاتو او اخبار انو کښ اتفاقا نشته، د تورات نسخ هم په اصولی خبرو کښ نه دے شوے، پاتے شو احکام په دے کښ هم مثلا عبادت کول، بت پرستی نه کول صله رحمی، عدل، او انصاف کول، ظلم او تکبر نه کول دا قسم احکام هم منسوخ نه دی دا قسم احکام د ټولو پیغمبرانو د پاره ابدی دی پاتے شو فروعات چه په یو دین کښ د زنا کار یوه سزا او په بل دین کښ بله سزا شی، د پاکئ ناپاکئ اندازے د قبلے بدلیدل په دا سے قسم احکامُ کښې که د ملک او قوم په مناسب تبدیلی اوشی نو دا خبره به یوه حکیمانه طریقهٔ تبلیغ وی ګوره که یو قوم د شرابو ډیر عادی وی نو دے قوم ته حکم کیږی چه شراب خو شراب دی چه د شرابُ ټول لوخی کلا سو نه، متکے او منګی مات کئ

او خرمد ه لپس چه د خلقو د زړه نه د شراب محبت لاړشي بيا ورته دا او ويلې شي چه لو خو نه ګناه نشته خير دے لوخى پاك كئ او استعمال كوے شئ پدے قسم نسخ كښ د خدای په علم كښ كوم فرق راغے د نسخ دغه قدر ے حقيقت دے او دے نه سوا اعتقاديات، اخبار او اصولي احكام په منسوخ كښ وارد نه او اعتراض كول ديره بے انصافي ده پدے مسئله كښ د علماء اختلاف شته ځوك بالكل د نسخ په قرآن كښ قائل نه دى او كوم اٰيتونه چه داسے د يو بل نه مخالف معلوميږى د هغوى تطبيق كوى او ځوك وائى چه نسخ په قرآن كښ شته بعض منسوخ الحكم دى لكه د كندے عدت اول اول يو كال وو بيا سلورمياشتے او لس ورځے شه كويا حكم منسوخ شه د بعضو اٰيتونو تلاوت منسوخ دے او حكم پاتے دے لكه "اَلشَّيْخُ وَالشَّيْخَةُ اِذَا زَنَيَا فَارْجُمُوْهُمَا" بعض اٰيتونه داسے هم وو چه د تول صحابه وُ د زړه نه خدای هير كړه يو صحابى بيان كوى چه ما په تحجد وكښ هغه خپل ياد سورت وے كوم چه ما ياد كړے وو خو ما نه بالكل هير شه هغه واقعه حضرت صلے الله عليه وسلم ته او كړه حضرت او وے چه هغه منسوخ التلاوة دے او ځمونږ د ټولو نه هير كړے شوے دے. حضرت عائشهؓ وائى چه هغه دا وو چه "عَشْرَ رَضَعَاتٍ مَعْلُوْمَاتٍ يُحَرِّمْنَ" ليكن د دينه مخكښ او سنو او محل بالكل هير دے دا د نسخ په باره كښ ذكر دے په دے بانده داشك مكوى چه داسے خو به ډيرے خبرے هيرے شوى وى او كلام به څه محفوظ پاتے وى ځكه چه دا خبره حكيم خداى مصلحتاً د حضرتؐ په زمانه كښ كوے چه حضرتؐ وفات شه او نسخه مكمله شوه نو بيا هيڅ قسم د لوخي هم كے زياتے نه دے شوے سوك چه د نسخ نه انكار كوى د هغوى دليل دا دے چه په نسخ كښ د جهت اتحاد ضرورى دے او په قرآني نسخ كښ جهتونه جدا جدا دى په دے وجه په قرآني احكامو كښ نسخ نشته وغيره

ما انزل علی الملکین، او ماانتنیئ، کښې بعض حضراتو عجیبه تاویلونه کړی دی ستاسو د
پاره هغه هم د معلوماتو ذریعه ده - په ما اُنزِلَ کښې دا ما نافیه دے یعنی نه دے نازل شوے
د الله د طرف نه په دوو ملائکو جادو په بابل ښار کښې او که دے ملائکو بچپله څه زده کړی
وو او خلقو به تر دا زده کول نو دوی به هله ورته ښوده چه د جادو انجام به څه در ته بیان که چه
په جادو باندے په عمل سره سړے کافر کیږی او د تقدیر نه په کښې سړے منکر کیږی خپل ځان یو
مختار مستقل اوګنړئ او دا کفر دے بهود یان به خکنه روان وو دوی نه جادو د کمال څیز ښکاریدو
په بابل کښې دوی نه دوی ته نه د توبے خیال راغ او نه یے د خدای طرف ته رجوع اوکړه
جادو به جاهل قوم کښې همیشه په ترقی کښې پاتے شویدے چه اصلی علم راشی نو جادو بیا
نه پاتے کیږی دا د وهم پرستئ او نادانئ پوخ تصور دے په هندوستان کښې هم په
جاهل قوم کښې د دے او د فالونو، څو نکو رواج شته - دا قوبے خبرے د مسلمان د پاره صنعِ دی
بهرِ د په دے حیران وو چه څومره ترقی خود درجے ته رسیدلے وه چه پیغمبران په مونږ کښې بادشاهان
په مونږ کښې د دنیا کوم نعمت په مونږ کښې نه وو دا څه چل او شه چه څومره ترقی په تنزل بدل
شوه او څومره نبوت د اسمٰعیلؑ خاندان ته لاړه، مونږ در بدر خاورے په سر کړو - نو
خدای پاک دوی ته جواب ورکوی چه که مونږ په خپل قدرت سره د یو قوم عروج په تنزل
بدل کړو یا یو قوم بالکل ګرك او هیر کړو نو دا مونږ ته یے عرض کوو چه هغه تباه شده قوم
بے کاره شوے دی او د هغه نه څه یا د هغه برابر بل یو قوم برسر اقتدار کوو که بنی اسرائیل تباه
شو نو عرب قوم د هغی جانشین شو چه په دوی کښې په سوونو بادشاهان او په لکهونو
حکیمان پیدا کیدونکی دی نو تاسو په خپل تنزل هیڅ تعجب مکوئ - زه په هرڅه قادر یم. دا
تشریح د ناسخ په ذیل کښې شوید ه -

أَمْ تُرِيدُونَ أَنْ تَسْأَلُوا رَسُولَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوسَىٰ مِنْ قَبْلُ ۗ وَمَنْ

اے مسلمانانو تاسو هم دا اراده کوئ چه تاسو د خپل رسول نه داسے سوالونه اوکړئ څرنګه چه موسیٰ نه د هغه قوم سوالونه کړی وُ او چا چه

يَتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَاءَ السَّبِيلِ ۝ وَدَّ كَثِيرٌ

د ایمان په بدل کښی کفر واغستو نو د هغوی نه نیغه لاره ورکه شوه دوست ګڼړی ډیر

مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا حَسَدًا مِنْ عِنْدِ

د اهل کتاب نه چه تاسو پس د ایمان نه بیا کافران کړی او دا د دوی په زړونو کښی یو کینه ده

أَنْفُسِهِمْ مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۖ فَاعْفُوا وَاصْفَحُوا حَتَّىٰ

کښی نو دوی ته د اسلام حقانیت ښکاره دے تاسو دوی معاف کړی۔ د دوی نه چشم پوشی کوی تر هغے

يَأْتِيَ اللَّهُ بِأَمْرِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۝

چه خدای بخپله د دوی فیصله اوکړی بیشکه الله په هر شیز قادر دے

یهودیانو به د حسد په وجه سره د دے چه د حضرت صلے الله علیه وسلم په پیغمبری
دوی علم لره د مسلمانانو په زړونو کښی عجیبه عجیبه سوالات او شکونه اچول او ساده
مسلمانانو به دغه سوالونه بیا د حضرتؐ نه کول کله به یی ورته ویل چه هر کله
لمونځ کیدے شی نو دا حکم چه سخت دے نو دا دے لمونځ شی او فلانکے دے پاتے شی کله به
یے دا سوالونه پرے کول چه د دے حالے څرنګه په کیږه کښی هلاک دے که جنۍ ده
خدای پاک مسلمانان د دے قسم سوالونو نه منع کړی او ورته وائی چه دا د یهودیانو
عادت وو چه د موسیٰ علیه السلام نه به دوی سوالونه کول او د دے بے ځایه سوالونو
په وجه په هغوی غضب راغلے وو۔ دا قسم سوالونه کفر دے او مومن له پس د ایمان نه
کفر نه ی کول پکار۔ د یهودیانو خو دا مطلب دے چه تاسو په څه چل بیا هغه کفر ته بوزی

کله به یهودیانو د حضرت نه بخپله سوالونه کول چه خزانه تورات به هیر راکوزشوے

دے دغسے دِ قرآن هم راکوزشی۔

مسلمانانو ته د دے متعلق فی الحال د معافئ حکم ورکیږی او د جهاد متعلق ورته اشاره

کیږی چه که دا یهود منع نه شو نو خدای به د دوی د پاره بل انتظام اوکی۔ چه مثلاً هغه

جهاد او د وطن نه شړل وو یا به هغوی جزیه ګکول وو۔

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۭ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ

او با قاعده مونځ کوئ تاسو او زکاة ورکوئ تاسو او هر څه چه مخکے لیګئ تاسو د پاره د نفسونو خپلو د

خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝

د ښیګڼے نه بیا به مومئ دا د خدای سره بیشکه الله ستاسو په کارونو بینا دے۔

دا د مخکے مضمون تتمه ده چه تاسو د چاشکی مزاج په شکونو کښ مه راځئ او بخپل ایمان

مضبوط اوسئ او د آخرت د پاره طیارے کوی په بدنی عبادتونو کښ د ټولو نه اعلیٰ

مونځ دے هغه اداکوی او د مالی عبادت نه هم مه غافله کیږی۔ زکوٰة ورکوی او نورے

ښیګڼے هم کوی او د دے عملونو اثر به په عالم مثال کښ موجود دی چه تاسو مړه شئ

نو هغه به او وینئ۔

حسد حرام دے او حسد دے ته وائی چه د بل نه دے دا کمال لارشی او په ما کښ دے

راشی۔ غِبطه جائز ده چه هغه دِ هم کمال لری خو په ما کښ دے هم راشی دے ته منافسه

هم وائی او مجازا ورته حسد هم ویلے شی۔

د دے آیت نه معلومه شوه چه مسلمانانو له تولے هغه خبرے اوریدل حرام دی په

کوموچه د مسلمانانو په عقیدو کښ شک شبه پیداکیږی او دغه وجه ده چه مسلمانانو

هلکانو جینکولہ د پادریانو پہ مدرسو هسپتالونوکښې چہ هلتہ د انجیل وعظ هم کیږی۔
سبق ویل یا هلتہ ملازمت کول یا د هغوی سرہ پہ دغہ سلسلہ کښې مدت کول حرام دی
بلکہ پہ دے سرہ د ایمان د تلو احتمال دے دغسے د هندوانو بت پرستو سرہ ناستہ
ولاړہ د هغوی پہ لامذهبہ مجلسونوکښې ټچپلہ شریکیدل یا ځیلے زنانہ د هغوی سخہ
پرلیږنودل د مسلمان شان ندے نن لوی لیډران د هندوانو پہ رفاقت ډیر خوشالہ دی
بلکہ بعضوخپلے زنانہ هم پہ دغہ صحبتونوکښې پرلیښودے دی او دغہ وجہ دہ چہ
حُوبن رنګونہ او عملونہ د پنډ تانو هسے شوا و د هغوی اثر را باندے اوشہ او د بَعْدِ
اِیمَانِكُمْ كُفَّارًا نظارے مونږ وینو د خدای کلام ریښتنے دے دشمن کلہ دوست کیدے
شی مسلمان د مسلمان نہ تحتی او د کافر عیسائی یهودی او هندو سرہ دوستی پید اکوی
پہ دے کښې صفا د خدای د حکم نہ خلاف دے خدای پاك دے مسلمانانو تہ هدایت اوکی

وَقَالُوا لَن يَدْخُلَ الْجَنَّةَ إِلَّا مَن كَانَ هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ
او وے بہ دوی چہ هرګز بہ داخل نشی جنت تہ مګر یوازے یهودیان یا عیسایان دا خواهشونہ د دوی دی
قُلْ هَاتُوا بُرْهَانَكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ۝ بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ
او وایہ ورتہ اے پیغمبرہ راوړئ دلیل خپل کہ تاسو رښتنی یئی خبرہ داده بلہ ندہ چا چہ ځان او سپارہ
لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِندَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ
خدای تہ او خہ کار هم اوکہ نو دہ د پارہ د خدای سخہ بدلہ دہ نہ بہ پہ دوی ویرہ وی او نہ بہ پہ دوی
يَحْزَنُونَ ۝ وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصَارَىٰ عَلَىٰ شَيْءٍ وَقَالَتِ
غم وی او وے بہ یهودیانو چہ د عیسایانو ہیڅ دین ندے او وے بہ

اَلنَّصٰرٰی لَیْسَتِ الْیَهُوْدُ عَلٰی شَیْءٍ وَّهُمْ یَتْلُوْنَ الْکِتٰبَ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِیْنَ

عیسایانو چه د یهودیانو دین نه دے او حال دا دے چه دوی لولی کتاب (تورات انجیل) همدا رنګے به ئې هغه کسانو

لَا یَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ فَاللّٰهُ یَحْكُمُ بَیْنَهُمْ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ فِیْمَا كَانُوْا

چه نه پوهیږي پشان د وینا د دوی او خدای به فیصله اوکی په مینځ د دوی کښې د قیامت په ورځ په هغه خبرو کښې چه

فِیْهِ یَخْتَلِفُوْنَ ۝

کومو کښې چه دوی اختلاف کاوه

د مذهبي خلقو دا لویه غلطي ده چه د دین صداقت کوم چه په ټولو مذهبي دینو کښې موجود دے ئې خپلو خپلو ډلو کښې بند دی او ګویا صداقت تباه کوی یهودیان وائي چه صداقت او حقانیت بوازې زمونږ په ډله کښې دے که مونږ هر څه چه کوو خیر دے خو چه د یو خاص جندے حلقې او دائرے د لاندے یو نو بس دغه صداقت دے دغسے د عیسایانو خیال وو د دے جهګړے خدای پاك په اصولی طور سره یو معیار ښکاره کوی او فیصله کوی او بیا د هرے ډلے صداقت په دے معیار وزن کیدے شي چه کومه یوه ډله ریښتنې ده نه هره ډله ریښتنې کیدے شي نه ټولے ډلے په ناحقه دی او د حق ناحق د پاره ضرور خاص علامات او نخښې پکار دی هغه خدای پاك داسے بیانوی چه صداقت خو په ټولو ډلو کښې وو لیکن ډلو د هغې نه مخ اګرځوو . نو ګویا اصالتا ډلے په حقه وے او عملا په دروغ دی اوس د ټولو په یوه نقطه د جمع کیدو طریقه دا ده . چه څوك په ځان کښې خدا پرستی او نیك عملی پیدا کی د خدای قانون د ځان د پاره د جوند طریقه اوګرزوی نو بس دغه ډله هر څوك چه وی هغه به ریښتیا وی او هغه صرف اسلام دے نو معیار د صداقت ډله بازی سرے، شفے جامے خاندان وغیره نشو بلکه خدا پرستی او نیك عملی د صداقت معیار دے

دا یوه لویه د فکر مسئله ده څو بنا اسلامي ډلې هم د دې نه نصیحت اخستے شي

وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَنَعَ مَسَاجِدَ اللّٰهِ أَنْ يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا

او څوک به وي ډیر ظالم د هغه چا نه چه منع کوي خلق د جماعتونو نه چه یاد کړے شي په دے کښې نوم د خدای او کوشش کوي د خرابولو د

أُولٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ ۚ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا

د جماعتونو کښې دے خلقو له پکار وو چه جماعتونو ته نه داخلیدے مګر په دا سے حالت کښې چه په دوی کښې خدا ترسي وي د دوی د پاره په دنیا

خِزْيٌ وَلَهُمْ فِي الْآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ

کښې رسوائي او په آخرت کښې لوئے عذاب دے۔

د مذهبي ډله بازي دومره زور وو چه هر یو ډلے خدای صرف په خپله عبادت خانه کښې ګاڼه او نورے عبادت خانې به ئې ورانه ولے دا د تعصب آخري درجه وه دا قسم واقعات د یهودیانو عیسایانو او بیا د مشرکینو د عربو د لاس نه شوي دي وائي چه بخت نصر بیت المقدس نړولے وو خزلے ئې پکښې اچولے وے په بیت المقدس کښې یهودیان حلال کړي وو په سنه ۶ کښې چه حضرت صلی الله علیه وسلم سره د مهاجرینو د کعبې شریفې زیارت نه د عمرے د پاره راتلو نو د مکې کافرانو حضرت عمرے ته پرے نښوده د دے دا مطلب وو چه ګویا دوی بیت الحرام وران که په عبادت ګاهونو کښې د عبادت د پاره د تلو ادب دا دے چه ډیر په عاجزي او خاکساري سره عبادت او شي هسے نه چه په عبادت ګاهونو کښې شپیلي وهلے شي، لاسونه وهلے شي مجلسونه په کښې کیږي چرته عبادت خانې او چرته دا سے بے ادبي او ګستاخي مونږ ته د یهودیانو عیسایانو او مشرکانو ظلم او بے حده ظلم ښودے شي چه هغه دا دے چه د جماعتونو نه خلق د عبادت نه منع کول وو او بل دا چه د عبادت ګاهونو بے عزتي په هغې کښې مجلسونه کول ګپونه لګول د چهے هسے په زوره چغې وهل دا ډیر لوئے ظلم دے۔ بل دا چه دا د فلانکو جماعت دے او دا د

ئلانگی جماعت دے پہ بے کبنں مونځ نه کیږی او پہ بے کبنں مونځ مه کوی دا غلطه مسئله ډیره مشهوره شوې ده چه مونږ غلامان یو په غلام مونځ نشته دا د ازادی یا د بې دینئ عوام کونګی ډېر وائي کو یا د دے مطلب دا شه چه تر څو خلق غلامان وی هغه د مونځ نه کوی نو ګویا دوی خلق په دے شیطانی مسئلے سره د مونځ نه منع کړه او د لوی ظالم نوم حقدار او ګرزیږی دوی ته دا نده معلومه چه بلال حبشی رض غلام وو سلمان رض فارسی غلام وو بلکه په ملکی جوند کښی خود ازادی او د خکاره اسلام چا نوم نه شے اخستے نو ایا هغوی په مکه کښی مونځ نه کاوو. او ځوك چه په اسے خواره روح کښ چه په کیږه او ګی دی او په جامو برنډه دی عاجزی خاکساری او عبادت نه کوی نو که دوئ له څه اختیار په لاس راشی او څه قدرے شته من شی نو ستاسو څه خیال دے چه دوی به بیا په پوزه ځج پرنګیدی. د عبادت نه خلق مه منع کوی ظالمان او بیالوی ظالمان مه جوړکیئ. د مشرکانو خویونه د هغوی د صحبت په وجه مه کوی جماعتونه په مانځګنه اروا اباد کړی. بیلماڅه خپل مه مش کوی چه د خدای د احسان شکر به نه ادا کوی دا سے سرے که ستاسو سالار کاروان شی نو تاسو خو به غرق کی په جماعتونو کښ چه داخل شی نو یواز ے الله الله کوئ او که څه اصلاحی خبره وی نو د هغه د پاره هم اجازت دے حجره او بازار او جماعت کښ فرق اوکئ۔

وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ

او د خدای د پاره دی مشرق او مغرب پس هر طرف ته چه مخ کرځوی تاسو پس هغه طرف ته خدای شته بیشکه علم بخښ او فراخ دی

د یوے بلے چه د بلے سره دشمنی وی نو د بلے د لے نه خبر ے ته هم بن وائی چه مسلمانان د بیت المقدس نه کعبے طرف ته د خدای د حکم په موجب او ګرزیده نو یهود یا نو اعتراض نه شروع کړو چه دا څرنګ کار دے کله بیت المقدس طرف ته مونځ کیږی او کله کعبے ته؟

دا خو د محمد صلی الله علیه وسلم خوخه ده چه څه کوی نو هغه کوی نو خدای ورله جواب ورکوی
چه تاسو بیت المقدس او کعبه داسے مقامات مه ګڼړئ چه ګنے د دوئ په ذات کښی یا په دے
خاص مقام کښی ګنے خدای دے او بل ځائے نشته . بیت المقدس او کعبه خدائ پاک د
خپل علم په موجب د دے د پاره مخصوص کړی دی چه د خلقو جماعتی یو والے یو رنګی راشی
او په تبدیلئ کښی دا مطلب وو چه آیا بیت المقدس ته عبادت د کرم جذبے ما تحت وو؟ کوم
خلق چه بیت المقدس ته د بیت المقدس په خاطر مونځ کوی او په دے مخصوص مقام کښی
د خدای خدائی منی نو هغوی به کعبے طرف ته مخ نه کړی او کوم خلق چه دا مقامات ځان له د
د خدای د حکم نه دومره اهم نه ګڼړی نو هغوئ به د تبدیلئ په حکم سره کعبے ته او ګرزی ګویا
د خدائی حکم او د بیت المقدس په منځ کښی چه کوم فرق دے هغه معلوم ول د تبدیل قبلے وو
مشرق او مغرب دغسے جنوب او شمال ټول د خدای د فراخ علم د لاندے دی مونږ
به د خدای د حکم تعمیل کوو مشرق او مغرب ته به نه ګورو مسئله ده چه که چا په تیاره کښی په
ځائے د کعبے د کوشش نه پس بل طرف ته مونځ او که نو مونځ به یے او شی ځمونږ عبادت د
خدائے د پاره دے کعبه ځمونږ د عبادت کولو او یک جهتئ نخه ده خلاصه دا ده چه خدای
د اطرافو د مکان نه او د هر قسم داسے خصوصیت نه پاک دے هر کله چه د خدای د خدائی
خصوصیت په بیت المقدس او کعبه غوندے ځائے کښی نشته نو د دے نه به بل کوم پاک
زیارت وی چه مونږ هلته خپل د مطلبونو دپاره غوندے اوړو او دا یقین کوو چه خپل دوی
بیړئ به د لته را اوباسو که هغه خدای هر ځائے وی نو آخر دا په بیلابیل حالت کښی که
او سنده په لاس ځمونږ په قبرو نو ګرزیږی ل څه معنی لری څوک شته چه پیرے غور اوکی
او بیا د جهالت د دے سیلاب په باره کښی څه کار اوکی ؟ د با با ګانو نوسی د خپلے کیدی دے د

د پارہ د دے پہ بارہ کښې کہ د پرخہ وائی اعتبار ورلہ نشتہ، نیم حکیم خلق وجنی خوخپل ځان ساتی ولے نیم حکیم خطرۂ جان، ونیم ملا خطرۂ ایمان، مقولہ خو صحیح جوړہ دہ تا سو وینئ چہ د توحید پہ باغ کښې څنګہ تیزے سیلۓ چلیږی

وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا سُبْحٰنَهٗ بَلْ لَّهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ كُلٌّ

او وئے یہ دوی چہ خدای اولاد لری پاک دے خدای د دینہ بلکہ د دہ د پارہ ټول ھغہ شیز رنہ دی چہ اسمانونو او زمکہ کښې دی

لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ۝ بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاِذَا قَضٰٓى اَمْرًا فَاِنَّمَا

ټول د دہ تابعداردی ھغہ عجیبہ پیدا کونکے د اسمانونو او زمکے دے او چہ خدائے ھر کار کول اوغواړی چہ

يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ

او شہ نو ھغہ فورا او شی

د دے ایت نہ اوس د عیسایانو د فاسد وخیالاتو رد شروع شہ، د عیسایانو دا عقیدہ وہ چہ عیسٰے علیہ السلام د خدای ځوئے دے دا عقیدہ د عیسٰے علیہ السلام پہ جوړ کښې د عیسایانو نہ وہ عیسٰی علیہ السلام د محبت نہ خدای نہ "اَبْ" پلار ویلے دے نادان عیسایانو د دینہ ظاھری پلار واغښتہ او عیسٰی ئے د خدای ځوئے کہ د دے عقیدے تردید پہ څہ عجیبہ دلیلونو سرہ کیږی چہ سُبْحَانَہٗ،- بچوری راورل خو پہ ممکنا تو ځیوا نا تو، نبا تا تو کښې کیدے شی خدای پاک خو د دے نہ پاک دے، بل د بچورو نہ دا غرض وی چہ پہ څہ سخت کښې پکار راشی نو ھغہ خو ھم پہ خدائے نہ رازی. لہ ما فی السمٰوٰت والارضِ، اسمانونہ او زمکے د ھغہ پہ ملکیت کښې دی او ټول ھغہ څہ د دہ ملکیت دے چہ پہ دے دواړو کښې دی. عیسٰی خو ھم د دوی پہ منځ کښې دے نو دے ئے ھم مملوک شہ او پلار او ځوئے خو کم از کم یو شان پکار وو کہ خدای مالک وی نو چہ عیسٰی علیہ السلام ھم مالک وے او ھغہ مملوک دے، بل بدیع السمٰوٰت والارض، خدای اسمانونو نہ او

زمکه پیدا کړے ده اوس عیسیٰ ؑ چه دوئ ورته د خدای زوی وائی ده پکښې کوم تکره پیدا

کړے ده. کمه زیاته؟ لکه دیره هر څه چه وی حقیقت خو دا دے چه هغه هیڅ نه دی جوړ کړی

ځلورم اِذَا قَضٰی اَمۡرًا خدای ﷻ د څه ظاهری سببونو نه هر کار کولے شی. وایی عیسیٰ ؑ

کښې هم څه دا سے قدرت شته هغه غریب خو ځان هم د یهودو نه خلاص نه کړ.

نو هر کله چه د عیسیٰ ؑ خدای سره هیڅ مناسبت نشته نو عیسیٰ څرنګ زوی شه عیسیٰ ؑ خو نه میاشتے د مریم ؑ په ګیډه

کښې وو بیا پیدا شه بیا ځوان شه خدای ته د دے څه حاجت وو په لفظ د کن به پیدا شوے وو"

دا دعوی د زوی والی ماته شوه یهود یانو به عزیر علیه السلام د خدای زوی وے، د عربو

مشرکانو به فرشتے د خدای لونړه ګڼړلے په دے عقلو باندے دا حقیقت ښکاره شه چه

د خدای د پاده اولاد نه ځڼړے، نشی کیدے او د غه وجه ده چه نن ورزے د یورپ عیسایان

د دے مسئلے په وجه عیسایت پریدی او د اسلام په دائره کښې داخلیږی او چه راتلل د اسلام

ورته او نه رسی نو بل څه دهریه، یا ملحد او ګرزی. عجیبه ده چه د دا سے باطلو عقیدو خاوندان

عیسایان په یو خدای منونکو باندے حاکمان دی د هغوی قانون د دوی په غاړه کښې دے

او د غه قانون په تلو تلو کښې مونږ ته سپاری چه مونږ خولا رو خو چه تا سو ګوری قانون

الٰهی قانون نه ګی قانون حکومت به هم هغه چلوی کوم چه څوک زور او ځوږ بگا اختلاف د چه هغه له دغه نظام باطل کښې او یو

اختیارات ورکړه او ماله دلبږ راکړه دا څوک د قرآن منونکو موحد ینو حال دے. اے

هادی هدایت ادکے آمین۔

# وَقَالَ الَّذِیۡنَ لَا یَعۡلَمُوۡنَ لَوۡلَا یُکَلِّمُنَا اللّٰهُ اَوۡ تَاۡتِیۡنَاۤ اٰیَةٌ ط

او وے به بے علم خلقو (د مشرکانو نه) چه ولے خبرے نه کوی خدای څوک سره یا څوک سره څه نخښې ولے نه راځی

كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ

همدا رنگ وینا کړې وه هغې کسانو چه مخکښې ددوئ نه وو پشان د وینا ددوی. یو رنګې دی زړونه د دوئ

قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ○ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا

مونږ بیان کړی دی نخښې د پاره د یقین کونکی قوم　　بیشکه مونږ لیګلې یې ته په حقه سره زیرے ورکونکے

وَّنَذِيْرًا ۙ وَّلَا تُسْئَلُ عَنْ اَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ○

او ویرونکے او سوال به نشی کیدلے له تا سونه په باره دوزخیانو کښې

دا د یهودو، نصاراؤ او مشرکانو سلونځتم قباحت دے چه دوئ وے مونږ څرنګه پیغمبر اُمنو

ملائکه دِراشی او څرنګه چه د رسول سره خبرے کوی وحی ورته کوی داسے دِ مونږ سره

خبرے اوکی لس مونږ به رسول او منو. دغه قسم د رسول د برابرتیا سودا په مخکنو

ناپوهو کښې هم وه دے سوال یا اعتراض نه نادانی ځکه ویلے شوی ده چه پیغمبری که

هر سړے کولے شوے او هر چاله ملائکے راتلے شوے یا د خدای سره د خبرو طاقت لرلے

نو بیا د رسولانو به څه خصوصیت وو. رسول خو په زړګونو لکونو کښې چرته یو وی او په

هغه کښې پس د ډیر محنت او عبادت نه دا قابلیت، دنړ اا وصفائی رازی چه هغه سره

خدائے یا د هغه سره ملائکے د وحی په ذریعه خبرے اوکی نو هر سړے د دے قابل کله جوړیدے

شی هر سړے بادشاه نه شی جوړیدے نو پیغمبر به څرنګه جوړ شی پس دا سوال ګویا د

لاعِلمئ او ناپوهئ نتیجه ده.

بل دا سوال وو چه مونږ ته دے څه نخه یعنی معجزه ښکاره کی د دے په باره کښې

الله تعالیٰ وائی چه یوه نخه خو څه کوے ډیرے معجزے تاسو ولیدے د متولو نه لویه معجزه

داوه چه دنیا حضرت صلے الله علیه وسلم سخه رادوانه وه او په حضرت صلے الله علیه وسلم

دلسے ملین وو چه جان مال او عزت په حضرت ئ فدا کاوو. داسے جاذبیت او معجزانه

کشش په بل چا کښ کله وو. یقینا نه وو خو د دے اثر په یقین کونکو کیدہ بے یقینه

خلق په دے اتبار نه کوی

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ؕ

او هرګز به رضا نه شی ستا نه یهودیان او نه نصاری تر هغے حده پورے (چه خدائ دِ نکی) تابعداری اوکے ته د دین د دوی

قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ

او وایه ورته اے پیغمبره چه بیشکه هدایت د خدائ صرف هم هغه هدایت د خدائ دے او که بالفرض که تا بعل اوکړه (تابعداری) خواهش

الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ؔ

د دوی (چه نشی کیدے) پس د هغے علم نه چه تا ته راغلے دے نو لنشته ستا د پاره د خدائ نه د خلاصئ د پاره څوک دوست او مددګار

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ

هغه خلق چه مونږ ورله کتاب ورکړے دے او هغه دا کتاب لولی لکه څرنګ چه د هغے حق دے (یعنی عمل پرے کوی) دوی ایمان

بِهٖ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ؗ

په کتاب راوړے دے او چا چه په کتاب کفر اوکړو نو دا زیان کاران دی

دا ایت د ورومبنو ایتونو نتیجه ده په دے کښ یهودو نصارا او هغه د زړه خبره

مسلمانانو ته ښکاره کیدے شی چه دوی لتا سو نه په هیڅ محبت، په هیڅ خدمت، ملازمت

خوشامندو، تعریفونو جرګو، مصلحتونو رضا کیدے نه شی حرف د دوی یو خیال دے

او هغه دا دے چه تاسو د دوی د دین، مذهب، قانون، رواج تابع شئ او س تاسو ځان

ته او خپل دین مذهب ته او ګوری. چه ایا تاسو دے ته تیار یئ چه د توحید په ځائے در ے

کافرانو سره قطع تعلق

خدایان اُمنئ دَ کفارو په مسئله یقین کولے شئ؟ اسلام غوندے پاک دین پریخودے شئ؟ که تاسو بالفرض داسے اوکړه او په دے پوهه یئ چه اسلام حق دے خو دا بهانه اوکئ چه مونږ دَ یهودیانو او عیسایانو نه فائده اخلو او ځکه دَ هغوئ دین، مذهب، طرز معاشرت، قانون، حکومت منو لکه چه هندوستانی ورته طیار معلومیږی نو خدای وائی چه په دے حالت کښ به تاسو له دَ خدائی نه ځنے څوک خلاصونکے نه وی۔ خدای به درنه تپوس کوی چه خالق مُ زه وم۔ ځما قانون حیات پتاسو جاری وو ځما په قانون حکومت ستاسو دَ پاره جسمانی خوراک طیاریئ او تاسو خوړو، تاسو دَ روحانی خوراک، دَ رهائش طریقه، دَ یو بل سره دَ اوسیدو طریقے کومے چه ماتاسو ته خودلے وے، ولے پریښودے، تاسو مسلمانان وے تاسو دَ نه مسلمانانو یهودو نصرانیانو، مشرکانو قانون ځان له ولے خوښ که؟

بعض خلق په اهل کتابو کښ خو هم وو چه تورات اولوستنه او ورته معلوم شوه چه حضرت محمد صلے الله علیه وسلم خو هم هغه رسول دے چه دَ کوم په تورات کښ ذکر دے نو دَ ځینے عهدے امرتبے، شکرانو او کتو پرواے او نکړه او مسلمانان شو او څوک چه په دے پوهه وو او بیا ئے هم حضرت محمدؐ او نه منه نو دوی به دنیاوی گټه کړی وی خو اُخروی زیان او که اودا ډیر لوئے زیان دے،

دلته مخاطب حضرت محمد صلے الله علیه وسلم دے دَ قرآن شریف ټول خطاب دَ حضرت سره دے په دے وجه دا خطاب هم دَ حضرتؐ سره دے کنی نو دَ حضرتؐ نه دا فعل صادریدل چه ځنے دَ عیسایانو وغیره تابعداری به اُوکی دا نه شی کیدے او بل طرف ته دا هم معلوم شوه چه کچرے بالفرض یو پیغمبر هم دَ گمراهانو ملگرتیا اوکی نو دَ خدای پاک دَ قانون انصاف په وجه به هم دَ ځینے ځنے پیغمبری په خاطر نه شی خلاصیدے ځمونږ دَ پاره په دے کښ لوئے سبق دے

چہ پیغمبر هم د قانون عدل نہ نہ شي خلاصیدے. نو ځوك میاں صاحب، ملا صاحب، پیر صاحب صاحب زادہ صاحب بہ ځان خلاص کی. کچہ دے دوئ د یهودو، نصاراؤ یا د مشرکانو تابع شي
پہ هغوئ کښ فنا شي د هغوئ بود و باش اختیار کی د هغوی سرہ تعلقات نا ستہ ولاړہ ساتی او د هغوئ فضیلت پہ مسلمانانو ثابتوی. خدا یہ مونږ د خپلو ټولو دشمنانو نہ جدا کے

يٰبَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِىَ الَّتِىٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّىْ فَضَّلْتُكُمْ

اے د یعقوب اولادہ ځما هغہ نعمتونہ یاد کئ کوم چہ ما تاسو پیر زو کړیدی او بیشکہ ما تاسو لہ پہ ټول خلقو

عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِىْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَّ

لوئے والے در کړیدے او ویریگئ د هغے ورځے نہ چہ بدلہ بہ نشي ورکولے یو نفس د بل نفس نہ د هیڅ شي او

لَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ۝

نہ بہ شي قبلیدے د چا د طرف نہ بدلہ او نہ بہ سفارش فائدہ مند وی او نہ بہ د دوی مدد کیدے شي

تاسو تہ بہ یاد وی چہ پہ سلورم رکوع کښ پہ يٰبَنِىٓ اسرائیل سرہ یو کلام خاص د یعقوب علیہ السلام اولادتہ شروع شوے وو او تر دے څوارلسم رکوع پورے هم دغہ ذکر وو. پہ وَدَّ كَثِيْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ، وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِىٓ اِسْرَآءِيْلَ پہ دے ټولو آیتونو کښ د دوی سلوینت عیوب بیان شو او د هغے اصلاح او بښودنے شوہ کو یا اول یو کُلّی مجملہ خبرہ وبلے شوے وہ بیا د هغے تفصیل اوشہ او پہ دے رکوع کښ بیا هم هغہ اصلی او لنی مقصد تہ د علم بلاغت د اصولو پہ موافق د خلاصۂ کلام پہ طور سرہ رجوع کیږی چہ تاسو عام او خاص انعامات شویدی تاسو لہ پکار دی چہ تاسو د قیامت د حساب کتاب نہ او ویریگئ او د حضرت محمد صلی اللہ علیہ وسلم پیغمبری او د قرآن شریف صداقت تسلیم کړئ.

امام ابن کثیر پہ خپل تحقیق کښ لیکی چہ بنی اسرائیلو د حضرت محمد پیغمبر کہ نہ منلہ

نو کویا پہ تکرار سرہ دوئ نه ویلے شي چه دا دَ نبوت فضیلت او انعام خو پیا سوهم شوے وو. تاسو دَ هغې زمانے پہ خلقو کښې ممتاز وئ نو کرَ ئې پہ اسمٰعیلي خاندان کښې پہ حضرت محمد صلی اللہ علیہ وسلم باندے دَ ختم نبوت احسان اوشه نو تاسو ورسره دے حسد او کینه کوئ که تاسو دا سے اوکئ نو کویا تاسو دَ هغې انعاماتو شکریه ادا نه کړه

لَا تَجْزِیْ نَفْسٌ عَنْ نَفْسٍ پہ قیامت کښې خود مختاري نشته چه کئے پلار یه دَ زوی دَ پاره خپل ځان پیش کی چه ځما دَ زوی تکلیف دے په ما شي. وَلَا یُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ. دَ کفارے تردید دے چه بل څه عوض په بدل کښې اغستل نشته یا بل بے گناه دَ گناهګار په بدل کښې نیوے نشي، وَلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ دَ کافرانو ذکر دے ځکه دَ قیامت منکران، دَ پیغمبرانو منکران خو کافران وی نو دَ کافرانو دَ پاره اول خو سفارش شته نه او که بالفرض څوک سفارش کوی نو هغه فائده نه کوی او پاتے شو مومنان نو بل ځائے کښې په آیة الکرسی کښې ذکر دے چه مَنْ ذَا الَّذِیْ یَشْفَعُ عِنْدَهٗ اِلَّا بِاِذْنِهٖ هو یا بے اجازته څوک په خپل اختیار سفارش نشي کولے البته چه چا ته اجازت وی نو هغه به سفارش کولے شي او س که چا ته دا دَ سفارش اجازت نه کیږے نو دَ اِلَّا بِاِذْنِهٖ مطلب بیا څه شه په دے وجه دَ مطلق شفاعت نه انکار دَ قرآن دَ ټولو شفاعتی آیتو نو دَ جمعه کولو نه پس غلط معلومیږی هره یوه خبره چه په قرآن شریف کښې راغله دغه خبره په نورو ځایو نو کښې هم کتل پکار دی او بیا دغه قول آیتو نه پس دَ جمعه کولو نه دا خبره صفا کیږی. او سړے په حقیقت پو هیږی تاسو دَ قرآن شریف په مطالعه کښې دَ دے اصول خاص خیال او ساتئ. تفسیر القرآن بالقرآن دَ دیته وائی.

وَ اِذِ ابْتَلٰۤی اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِکَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ؕ قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُکَ لِلنَّاسِ

او په هغه وخت کښې چه ازمینت او که ابراهیم رب دَ ده په یو څو خبرو سره نو هغه پوره کړے او دَ خدائے ترجمه تا دَ خلقو

## اِمَامًا قَالَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِيْ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ ○

امام جوړوم اُوے ابراهیم چه خما اُم ولاد نه به هم څوک امام وی او وے خدای چه (او) خو سنا ظالم اولاد شر خما وعدہ نشته

دبنی اسرائیلو په عیبو نوکښې یو لوئے عیب دا وو چه دوی د مسلمانانو په زړو نوکښې اعتراضونه

پیدا کول، خاصکر د نسخ او د قبلے د تبدیلئے په باره کښې دوی ډیر شکونه پیدا کړی وو د دے

مجمل جواب خو اوشه لیکن د دے ایتونو نه پس د ے سلسله کښې یو خاص تفصیلی جواب شروع

کیږی دا جواب به تقریبًا تر سلو رکوع پورے وی اول د کعبے د جوړونکی ابراهیم علیه السلام

فضیلت او د هغه د امام جوړیدو بیان دے بیا به د کعبے فضیلت او د هغے د جوړولو قصه

بیانیږی په دے کښې به نورے هم ډیرے د نصیحت نه ډکے خبرے بیانیږی د کعبے پجوړولو

کښې چه کوم حکمت دے هغه به بیانیږی او د امام القبلتین حضرت محمد صلی الله علیه وسلم

خصوصیت د ابراهیم علیه السلام سره ثابتیگی او د حضرت محمد نبوت په ټول جهان یو

احسان عظیم دے تاسو به په دا تلو نکو ایتونو کښې د دے خبر و خیال ساتئ۔

د دے ځائے نه یو تاریخی ثبوت د حضرت محمد د پیغمبرئ د پاره شروع شو، چه

اسحٰق او اسمٰعیل دواړه د حضرت ابراهیم اولاد وو- دا ټول منی او حضرت ابراهیم د

یهودو او نصارئ وو، ټول متفقه بیکه ډیر بزرګه هستی ده هغه هم خدای پاک د خه والی

په وجه امام یانې جوړ کړے وو او ده بیا د خدای نه دا سوال کړے وو چه خما په اولاد

کښې هم امامان جوړ کړه نو خدای پاک ورته یو قانون او ښوده چه ښه ده ستا په اولاد

کښې به امامان وی، خو فاسقان او ګناهګار به امامان نه جوړیږی. اوس که موسیٰ

عیسیٰ داود علیهم السلام او دغسے نور پیغمبران د اسحٰق علیه السلام په اولاد کښې د نیکئ

په وجه پیغمبران وو او دا د ابراهیم علیه السلام د دعا اثر وو نو ایا د اسمعیل علیه السلام په

اولادکښې څوک پیغمبر بے د محمدؐ نه تیر شوے دے؟ او که نه وي تیر شوے نو محمدؐ دِ
ولے د اسمٰعیلؑ په اولادکښې پیغمبر نه شي. آیا خدا نخواسته په دے کښې د امامت هغه
شرط نشته؟ او که محمد صلی الله علیه وسلم د ابراهیم علیه السلام په اولادکښې هم وي
او امین او صالح هم وي نو آخر تاسو په څه خبره، په کوم دلیل د محمدؐ د پیغمبرۍ نه انکار
کوئ خصوصاً هر کله چه د اسحٰقؑ په اولادکښې د نسبي لويي نه د عمل صلاحیت او دو پاتے
نه وو په کومه وجه چه ابراهیم علیه السلام له امامتي او پیغمبرۍ ورکړے شوے وه هغه
په بني اسحٰقؑ کښې نه وه پاتے شوے چه هغه امتحان د ځان، مال او د اولاد د قربانۍ وه
د نمرود په مقابله کښې په توحید داسے عاشق کیدل چه اور ته یے او ردا ننګل، وطن پریښود
شام ته لاړه خپل ټول مالِ په مهمان نوازي او مسلم پروري کښې صرف کړے وو او په
آخر کښې یے خپل د ځګر ټکړه اسمٰعیل هم د قربانۍ د پاره پیش کړه دا د بني اسرائیلو
مورث اعلیٰ وو او دا د هغه د پیغمبرۍ او په امتحان کښې د کامیابۍ حالات وو که د نسبي شرافت سره
دا صفات پتاسو کښې نه وي او په محمد صلی الله علیه وسلم کښې وي نو محمدؐ دِ ولے نبي نه شي
د امتحان نه غرض کله دا وي چه ممتحن خپل ځان د طالب العلم د لیاقت نه خبر وي او کله ممتحن
بیځیله خبر وي خو د طالب العلم لیاقت په خپلو نورو ملګرو واضح کوي. چه که دے ته څه لیاقتي
وظیفه عهده یا لويي ورکیدے شي نو د دے ملګرے دِ خبر شي چه د دے وجه د دے طالب العلم
خپل لیاقت دے خدايي ټول امتحانات هر ځائے چه وي او په هر چا باندے چه وي هغه به د دویم
قسم نه وي کله یو طالب العلم فیل شي نو هغه ذلیل خوار او په تکلیف کښې ګرفتار شي. یو
طرف ته لیدونکي پوے شي چه نالایقه وو هم دغه د دے سزا وه او دا طالب العلم هم کله منلو
نه وي وايي چه خو دغه ځما د نه کارکولو نتیجه ده، قرآني امتحانات په دے معیار کوري

امامتي مشرۍ نه وائي. په مشرو کښې د ټولو نه لویه روحاني مشري پیغمبري، او جسماني مشري بادشاهي ده د روحاني مشرۍ د پاره قرآن کریم دا شرط وائي چه لَا یَنَالُ عَهْدِی الظّٰلِمِیْنَ ځما پیغمبران ظالمان نشي کېدلې، د ظلم معنی خلاف ورزي کول دي. دا متفقه خبره ده چه پیغمبران معصوم دي د هغوی نه لوی ګناهونه خو قطعًا نه کیږي او واړه لغزشونه د انسانیت په وجه که اوشي نو پیغمبر دغه ته هم ظلم په دې وجه وائي چه پیغمبر له دا لغزش هم نه وو ښکار خو که دا هم او نه کړي نو د خدای او د بنده په مینځ کښې به فرق را نشي او د غه لغزشونه هم د پیغمبرۍ نه مخکښې شوي دي. بهرحال د پیغمبر د پاره دا شرط دې او ټولې سره پیغمبران جوړ شوي دي دغه د نه ظلم شرط په حضرت صلی الله علیه وسلم کښې هم وو په دې وجه هغه هم پیغمبر او خاتم النبیین وو،

د دې نه ښکته د امامت ډیرې درجې دي. بادشاهي، امیري، قائدي، راهنمائي د قوم مشري د کلي، ښار مشري، د جماعت امامتي، د کور مشري په دې ټولو کښې به هغه امام کامیاب وي چه د روحاني امام پیغمبر سره زیات تعلق لري او د ظلم نه لرې لرې ګرځي څوک چه امامان او لیډران دي او کار یې شپه او ورځ ظلم دې، په بل زیاتي ده ځان له خپل خاندان له ګټه ده پره ده او جنبه د ه د هغوی امامت به نا پوهه خلق مني پوهیږي نه به هر وخت په دې انتظار کښې وي چه دا امامت د پاتې نه دې امامان که خپله بغا غواړي نو ښکار دي چه په ځان کښې ډیر نه ډیر صلاحیت پیدا کړي خپلې کوتاهۍ لرې کړي او خپل ځان صالح کړي او که صالحان نه وي او امامتي ور ته د غاړې شوې وي نو امامتي دې پرېږدي، فاسق والې، فاجر والې او د کا فرو محبتونه او امامتي دواړه نه یو ځای کیږي څوک شته چه ځان نه او ګوري او امامانو لیډرانو ته په دې قرآني معیار باندې نظر

او کې او ځان له صالحان اماماں جوړ کې ؟

وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ

او دا خبره یاده کړه چه او کرزوو موږ بیت الله ځاے د عبادت او امن او او نیسه دوی د ابراهیم ځاے

مُصَلًّى ۖ وَعَهِدْنَا إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ

د مونځ ځاے او وعده او کړه موږ د ابراهیم او د اسمٰعیل سره چه صفا او ساتئ ځما کور (کعبه)

لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ۝

د طواف کوونکو اعتکاف کوونکو رکوع کوونکو سجده کوونکو د پاره

د حضرت ابراهیم علیه السلام فضیلت بیان شه او س د هغې آبادۍ فضیلت بیانیږی کوم

چه هغه جوړه کړے وه قرآن شریف دلته یو څو فضیلتونه بیانوی اول مَثَابَةً یعنی ځاے د

رجوع، دا واقعات دی او تا سو خاص کر د حاجیانو نه تپوس او کړئ چه هر څو مره کلونه چه

څوک کعبه شریفه او وینی نو بیا بیا د تلو شوق په زړه کښ لری او چه وس کیږی نو

خامخا ورله ځان رسوی او بل ځاے د امن دے هر قسم ژوندی سړے چه دلته ورننوزی نو

هغه به د ضرر نه محفوظ شی. حتی که قاتل په کعبه کښ امن واغستنه نو هغه به په امن وی

تر هغې چه د کعبې نه باهر نه شی بل هغه خاص ګټه چه ابراهیم علیه السلام به په هغې ولاړ ود

او اسمٰعیل علیه السلام به ورله ګټې ورکولے او په هغې ګټې د ابراهیم علیه السلام د خپو نخښې هم

وے دا ګټه به د امام غوندے مخکښې طرف ته کې او دے به د مقتدی هسے او دریږی

او دوه رکعته واجب به او کی دا دوه رکعته پس د طواف نه کیدے شی.

د کعبې جوړول د حضرت ابراهیم علیه السلام خپل خیال نه وو. هغه د ګټو مکان

چه جوړ که او دا مکان د ټولو نور د جماعتونو نه افضل شه دا د خدای په حکم جوړ شوے

دو خدای پاک ورته ویلي دو چه څه قسم پلیتي دِ په کښې نه دي، بُتان دے په کښې نه وي فحش کلام، دروغ او بهتان دے په کښې نه وي او د پاسه پروړنی د ادب نه نه تیریګي نو ظاهري پلیتي دِ په کښې هم نه وي، طائفين مسافر غیر مکي خلق دے او عاکفين مقامی مکي خلق دے دِ دینه معلومه شوه چه په کعبه کښې بے د خدا پرستئ وعظ او نصیحت نه بل څه قسم دنیوي شغل نه دے پکار نجاست ظاهري او اعتقادي شرک، کفر، قتل زنا شراب خوري، جنګ جهګړه فتنه، فسادخو په کښې قطعا حرام دي، د کعبے دا عزت د ابراهیم علیه السلام د زمانے نه دے دا په شریعت محمدی په کښې یوازے نه دے بلکه دا هم معلومه شوه چه کافران نجس دي دوی به کعبے ته نه داخلیږي او یهود او نصارا ؤ به وے چه دا څه محمد صلے الله علیه وسلم د مشر کانو یو رسم جاري ساتلے دے او محبت ملکی او قومی په وجه کوي او په دے وجه سره د یو محبت کوي" په دے الیتونو کښې د هغوئی تردید هم اوشه، چه دا د حج طریقه د ابراهیم علیه السلام د زمانے نه شروع ده چه هغه ستاسو او څمونږ د ټولو نیکه دے کو یا ابراهیم علیه السلام لکه چه په لوړو معاملو کښې از میلے شوے وو او په هغه کښې کامیاب شوے وو نو هم دغسے دا د کعبے ابادی هم یو ډیر ګران امتحان وو په دے الیتونو کښې د ع بوړهش کا نو هم یو رنګي تعریف اوشه چه تاسو خو دا یي چه مونږ په ملت ابراهیمی یو او د خانه کعبے ادب هم کوي، خو دا کعبه ابراهیم علیه السلام د مانځه د طواف د اعتکاف او الٰهی عبادت د پاره جوړه کړے وه تاسو په کښې بُتان څرنګ کیښودے بل دا خو د امن ځائے وو تاسو د دے نه مسلمانان څرنګ منع کوی.

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ

او دا خبره یاده که چه ابراهیم اووے چه ای خدایه او ګرځوه دا ښار د امن او ورکړه اهل د ده ته

مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ

د میوو روزی هغه چا ته چه ایمان راوړے دے په خدای او په ورځ د آخرت خدای اووے چه او هغه کافر

فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ اَضْطَرُّهٗۤ اِلٰى عَذَابِ النَّارِ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ

له به هم نفع ورکوم لږه بیا به زه دوی مجبور کړم د اور عذاب ته او دا ناکاره د ګرځیدو ځائے دے

دا د ابراهیم علیه السلام دریم سوال دے اول دا سوال وو چه ځما په قوم کښې امامان پیدا کړے ابراهیم علیه السلام خصوصیت نه وو کړے خو خدائے تعالیٰ خصوصیت او که چه ستا په اولاد کښې به یوازے متقیان امامان جوړیږي ظالمان به نه جوړیږی بیا دے سوال کښې ابراهیم علیه السلام خاص سوال کوی چه کعبه خو ما جوړه کړه نو دلته د آبادئ څه سامان نشته یو غیرآباد وادی ده د دے ځائے مؤمنانو خلقو ته خاص کر میوے ورکړے چه کعبه پرے آباده وی نو خدای پاک دا خصوصیت لرے کوی چه د روزئ خصوصیت ځما په دربار کښې نشته زه به هر چا له روزی ورکوم او بیا به کوم چه څوک ناکاره وی نو هغه به عذاب ایږی.

د مکے قریشو ته خدائے تعالیٰ دا حال ښکاره کوی چه دا ستاسو لغتونه او میوے د ابراهیم علیه السلام د دعا برکت دے او دا آبادی ټوله د کعبے برکات دی تاسو له پکار دی چه کعبے ته په راتلو نکو باندے سختی نه کوی،

دا د کعبے برکت دے چه د هر قسم حملو نه بچ پاتے شویده په بیت المقدس باندے څو څو قسما قسم مصیبتونه راغلی دی، او کعبه شریفه په عیسائی جنګونو او د

چنگیز خان په جهان سوز وحملو کښی محفوظ پاتے شو یده او مخکښی به هم محفوظ
وی انشاء الله تعالیٰ' دمیوے تدبیر دَ طائف په باغو نو سره اوشه په طائف
کښی میوے ترکاری پیدا کیږی' او دا مے میوه نشته چه په مکه معظمه کښی نه
مو ندلے کیږی۔

وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ

او یاد که چه پورته کول ابراهیم او اسمٰعیل دیوالونه دَ بیت نو وے چه اے ربه څمونږ قبول کښه دا خدمت

مِنَّا اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝ رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ

څمونږ نه بے شکه ته اوریدونکے او دانا یے اے ربه څمونږ مونږ نور هم زیات چټل فرمان بردار که

وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا

او څمونږ په اولاد کښی هم تابعدار خلق پیدا که او مونږ ته دَ حج طریقه اوخیه او مونږ ته توجه اوکه

اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ۝ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ

بے شک ته یو از ے توجه کونکے مهربان یے اے خدایه پیغمبر تو لکی کښی دَ دوی نه یو رسول پیدا کے

يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ

چه هغوی ته ستا ایتونه لولی او هغوی ته دَ کتاب او دَ عقلمندے خبرے خیی او هغوی پاک کی

ع ۱۵ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ۝

بیشکه ته غالب قدرت لرونکے او پوره انتظام کونکے یے

دَ خدای پاک سخه دَ لو یے درجے پیغمبران' پلار او زوی ارم دی۔ دَ خدای دَ حکم
په تعمیل کښی یو غیر اباد وادئ کښی عبادت خانه جوړوی ځان له ښکله کوته جوړوی
او ورسره دا هم غم دے چه خدایه مونږ خویو از ے ستا دَ حکم په تعمیل کښی دا کار کوو

هسے نه پهٔ یکښې خونږ نه داسے کوتاهي اوشي چه کنے ته پرخفه شے او خونږ دالتعمیل حکم ستا
د ناراضګئ سبب او ګرزی نو خدایه ته خونږ دا عبادت قبول کے او خدایه ته اوریدونکے
یے چه سونږ اٰبادی هم کوو۔ اوو یر یوی هم سوالونه کوو او ته خونږ په حال عالم یے چه خونږ
غرض یوازے ستا رضا ده، مخکښې بل سوال کوی چه دا د فرمان برداری دا جذبه په
مونږ کښې نوره هم زیات کے او یوازے په مونږ کښې نه بلکه خونږ په اولاد کښې هم خپل
فرمان بردار پیدا کے او مونږ ته د حج کولو طریقے مقامات او ځایونه اوخیے او که بیا ے
سلسله کښې څه کوتاهي کیږی نو ته په مونږ خیال لرے بل ځوك په مونږ خیال کونکے
او خاص کر رحیم خیال کونکے نشته، بل سواله کوی (او دواړه ے کوی) چه خدایه خونږ
په اولاد کښې یو رسول پیدا کے چه هغه خلقو ته ستا اٰیتونه لولی، هغوی ته د کتب تعلیم
ورکوی، هغوی د عقلمندئ او د مسئلو د ارخکلو په طریقه پوی کړی او د هغوئ نه
ظاهری او باطنی پلیتی لرے کوی دا سوالونه که چا ته قبلول ګران وی نوی به خو تانه
چه غالب او د حکمت خاوندیے ګران نه دی،

په دے اٰیتونو کښې یوه خاصه اشاره د حضرت محمد صلے الله علیه وسلم پیغمبرئ
طرف ته ده ځکه چه د ابراهیمؑ او د اسمٰعیلؑ په اولاد کښې یوازے حضرت صلے الله علیه وسلم
داسے نبی وو چه په دے صفاتو موصوف وو نور نبیان که د حضرت ابراهیم علیه السلام
اولاد وو نو ورسره د اسحٰقؑ اولاد وو د اسمعیل اولاد نه وو ځکه هغوی د دے دعا مصداق
نه دی نو هر کله چه محمد دا ابراهیمؑ او اسمعیلؑ د دعا په وجه نبی او خاتم النبیین دے نو
د هغه نه منل ګویا د ابراهیم نه منل شو په دے کښې په یهو دو او عیسایانو باندے
تعریض دے،

د وعظ طریقه (۱) عوام ته د خدای آیتونه اورول دی (۲) کتاب خاصو خلقو ته ښول دی (۳) د شریعت اسرار دے علماء او مجتهدین زده کوی او دغه خلق د عُلَمَاءُ اُمَّتِیْ کَاَنْبِیَاءِ بَنِیْ اِسْرَائِیْلَ مصداق دی عاملان یادوی کا چه په دے کښې په کوم عاملان دی او د نبی څرنګ وارثان دی (۴) تزکیه او روحانی پاکی بعض ډیر و خاصو خلقو ته نصیب کیږی د دوی په زړونو د نبوت رڼا لګانے پریوزی او دا اکو یا د اینے هسے عکس وی دا خلق اولیاء الله وی په دے مرتبه کښې صحابه خواکثر وو، په تابعینو او تبع تابعینو کښې دا سے خلق ډیر تیر شوی دی چه زه د هغه د بیان نه قاصر یم، "شواهد النبوة" او "حلیة الاولیاء" او ګوری

وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهِيْمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ وَ

او څوک دا ابراهیمی مذهب نه مخ ګرزوے شي مګر هغه خلق چه ځان نه پیژني او

لَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِى الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِى الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ۝

موږ غوره والے ورکړے وو ده لره په دنیا کښې او دے په آخرت کښې د ښه خلقو نه دے

اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗۤ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ۝ وَوَصّٰى

او په هغه وخت کښې چه اووے وه ته رب د ده چه فرمان بردار شه نو او وے ده چه زه فرمان بردار یم د رب العلمین او وصیت کړے

بِهَاۤ اِبْرٰهِيْمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ يٰبَنِىَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ

په دے خبره ځامنو ته او یعقوب ته چه اے ځامنو بیشکه الله غوره کړے دے ستاسو د پاره دین اسلام

فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ۝

پس مه مری تاسو مګر په دے حالت کښې چه تاسو مسلمانان یئ

د حضرت عبد الله بن سلام رض دوه وریرونه وو د یو نوم سلمه او د بل نوم مهاجر وو.

ددی را او غوختنه او ور ته ئے اووے چه گوره بچو په تورات کښې داسے الله وائی "چه زه

دَ اسمعیلؑ په اولاد کښې یو نبی پیدا کړم چه دَ هغه نوم به احمد وی پس چا چه په هٔه ایمان راوړه نو هغه به

په نیغه لاره وی او چا چه ایمان را نه وړه نو هغه به لعنتی وی "دَ دې په اورېدو سره سلمه خو مسلمان شه لیکن

مهاجر انکار اوکړو په دې سلسله کښې وَمَنْ يَّرْغَبُ نازل شه چه دَ ابراهیمی دین نه څوک انکار کولے شی نو صرف هغه

څوک به انکار کوی چه بے عقله وی ابراهیم خو خدای په دنیا او په آخرت کښې ممتاز کړے وو او دے دَ نیکانو نه وو

گویا که مشرکان او کافران دَ ملت ابراهیمی نه خارج دی نو صرف یهودیان او عیسایان

خو دَ ملت ابراهیمی نه بالکل باهر دی ځکه چه دوی عزیرؑ او عیسیٰؑ مسیح ته دَ خدای زوی وائی

په اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗ اَسْلِمْ "کښې دَ ابراهیمؑ دَ غوره والی وجه بیانیږی چه ما دے ځکه هرگز بیږ که

چه ما دَه ته اووے چه ځما حکم او منه نو دَه را ته خپل ځان، مال، او هر څه او سپارل او

بیا یې خپل اولاد ته هم دا نصیحت اوکه چه تاسو به هم په اسلام باندے مړی په دے

وصیت کښې ورسره یعقوبؑ هم وو - دَ پیغمبرانو او دَ نیکانو دا عادت دی چه یوازے ځان

نه پورے باسی بلکه خپل اولاد او دوستانو ته هم دَ نیکئ نصیحت کوی، او دَ آخر وخت دَ ایمان

ډیر اعتبار دے - آخری حالت دَ نیکانو خه گرزی

اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا

آیا تاسو بچیله موجود دری چه دَ یعقوبؑ آخری وخت راغی چه هغه دَ خپلو ځامنو نه پوښتنه کړه چه

تَعْبُدُوْنَ مِنْ بَعْدِيْ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ اِبْرٰهِيْمَ

تاسو به څه شی لره عبادت کوی نو اووے هغوی چه مونږ به عبادت کوو دَ خدای ستا او دَ خدای دَ پلار دَ نیکونو ستا چه ابرهیم

وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا وَّاحِدًا وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ۝

اسمعیل او اسحق دے خدای یو او مونږ دَدَه فرمان بردار یو

د حضرت یعقوب پہ وصیت باندے یہود یانو اعتراض کاوو چہ ھغہ د توحید وصیت اولاد تہ نہ دے کرے نو خدای پہ دے اٰیتونو کښں د ھغوئ جواب کوی

یعقوب علیہ السلام چہ مصر تہ راغی او خلق او لید چہ د ستورو، بتانو، غوا یا نوا د ہیشو کانو عبادت کاوو نو دہ سرہ غم شہ چہ خدای خبر ځما اولاد بہ څہ کوی نو ځکہ دہ خپلو ځامنو نہ تپوس اوکہ چہ تاسو بہ ځما نہ روستو د چا عبادت کوی ھغوی د پیغمبر ځامن وو، جواب ورکوی چہ مونږ خو بہ ستا د پلرونو، نیکونو چہ ھغہ یو خدای دے فرمان بردار یو غم مکوہ مونږ د ستورو او بتانو عبادت کونکی نہ یو گویا ثابتہ شوہ چہ یہودیت د یعقوبؑ نہ روستو شروع شوے دین وو د دے پہ بارہ کښں یعقوبؑ مخکښں څہ نہ دی ویلی کہ د پیغمبر خوئے وی نو ھم چہ څو توحید، تنز یہ نہ منی نو پیغمبر ھم نہ شی خلاصولے، پیرزادگان د ځان تہ فکر او کی چہ خلق د قبر پرستئ او د ځان پرستئ، انسان پرستئ نہ منع کی پخپلہ ھم مُوحدان وی او خپلو روحانی ځامنو تہ ھم د توحید تعلیم ورکوی۔

تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْئَلُوْنَ

دا یو جرگہ وہ چہ تیرہ شہ د دوی پہ کار بہ خپل کار راشی او ستاسو پہ فائدہ بہ ستاسو کار راشی او ستاسو بہ د دوی عمل

عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝ وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا قُلْ

تپوس نشی کیدے اووے بہ دوئی چہ شئ تاسو یہودیان یا عیسایان نو لار بہ بیا مومئ او وایہ ورتہ

بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ۝ قُوْلُوْا اٰمَنَّا

(خو گنی) چہ پہ ملت د ابراھیم باندے یو چہ د کوگ والی نہ پاک ؤ او ھغہ مشرک ھم نہ وو او دا یی چہ مونږ ایمان راوړے دے

بِاللّٰهِ وَمَا اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَا اُنْزِلَ اِلٰى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ

پہ اللہ او پہ ھغہ کتابونو چہ پہ مونږ نازل شوی دی او پہ صحفو چہ پہ ابراھیم ۳ اسمٰعیل ۴ او اسحق ۴

وَيَعْقُوبَ وَالْأَسْبَاطِ وَمَا أُوتِيَ مُوسَىٰ وَعِيسَىٰ وَمَا أُوتِيَ

یعقوب او د هغه په نوسو نازل دی او په هغه چه موسیٰ عیسیٰ او په هغه چه ورکړے شوی دی

النَّبِيُّونَ مِن رَّبِّهِمْ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ

نورو نبیانو ته له طرف د رب د دوی نه موږ جدائی نه کوو په منځ د یو د دوی کښې او موږ د خدای فرمان بردار یو

فَإِنْ آمَنُوا بِمِثْلِ مَا آمَنتُم بِهِ فَقَدِ اهْتَدَوا وَّإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّمَا

که دوی ایمان راوړه لکه چه څرنګ تاسو ایمان راوړے دے نو دوی به لار بیاموندی او که دوی مخ اړګرزی دوی نو

هُمْ فِي شِقَاقٍ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ

دوی به په اختلاف کښې دی قریب دے چه دوی نه خدای به ستا سو بدل واخلی هغه اوریدونکے دانا دے

په تیرو ایتونو کښې د پیغمبرانو په ملت اسلامی باندے کیدل ثابت شول او یهودیان او نصاری د دین ابراهیمی نه څکه زوونکی معلوم شو کو یا یهودیان او عیسایان د خدای سخه هیڅ درجه نه لری خو یهودیانو او عیسایانو تش په خاندانی خپلولی فخر کاوه او دوی به وے چه څمونږ د خلاصی د پاره دا خبره کافی ده، نو خدای پاک د دے جواب کوی او په دے کښې تولو د نیکانو خلقو اولاد ته اصلاحی ثبوت ورکوی چه تش نسبی خپلولی د نجات ذریعه نه جوړیږی او دا ناخلفه ځامن د خپلو نیکونو د شفاعت حقدار نه جوړیږی په قرانی ایتونو کښې د دے نسبی فخر کونکو د پاره ډیر ذکر دے په احادیثو کښې هم ډیره ذخیره

دا سلام نه زیات منصفانه دین چه ادم نه تر محمد صلی الله علیه وسلم راغلی ووخه دین بل کوم کیدے شی چه د تولو پیغمبرانو په صداقت قائل، د هغوئی کتابو نه تسلیم، معجزے حق او رف جزئی خبرو کښې د زمانے د اصلاح په خاطر لږ ډیر فرق به راغلی وی یا تے شه یهودیت او نصرانیت نو هغوی هر یو وائی چه صداقت یواز ے په مونږ کښې دے نور خلق ګمراهان دی

خدای پاك هم دغه نافرمان یهود د مدینې منورې نه جلاوطن کړه، بنی قریظه ذلیل او خوار

شو د نجران عیسایان تابعدار شو دا د اختلاف سزا وه چه ورته فسیکفیکهم الله کښې

اشاره وه نو مضمون صفا دې چه هر څوك به پخپل عمل پورې وزی د بل په عمل د خلاصې

امید ساتل عین کم عقلي ده،

صِبْغَةَ اللّٰهِ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً وَّنَحْنُ لَهٗ عَابِدُوْنَ ۝

موږ به په خدای رنگ کښې یو، څوك دی چه د هغه رنگ به د خدای نه زیاتي ښه وي او موږ خو د خدای غلامي کونکي یو

قُلْ اَتُحَاجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ وَلَنَا اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ

او وایه ورته چه تاسو د خدای په باره کښې موږ سره دلیل بازي کوی حال دا چې هغه زموږ او ستاسو رب دی زموږ عملونه زموږ دپاره دي

وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ۝ اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهِیْمَ وَاِسْمٰعِیْلَ وَاِسْحٰقَ

او ستاسو د پاره عملونه ستاسو دي او موږ خو خالص د هغه خدای نه سپارلي یو، آیا تاسو وایئ چه ابراهیم اسمعیل اسحق

وَیَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰی قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ

یعقوب او د هغوی اولاد یهودیان یا عیسایان وو او وایه ورته چه تاسو ښه پوهیږئ

اَمِ اللّٰهُ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ وَمَا

که الله او څوك دی په ظالم د هغه چا نه چه پټوي هغه شهادت چه د ده سره رسیدلې وي د طرف د خدای نه او

اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ۝ تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ

خدای بې خبره د کارونو ستاسو نه دا یو ټولګی وو چه تیر شو د دوی د پاره د دوی عمل بکار دی

وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ۝

او ستاسو په فائده به ستاسو عمل رازي او ستاسو نه به د دوی د عملونو سوال نشي کیدی،

په عیسایانو کښې دا دستور وو چه د هلك په اوومه ورځ به دے په زیړو او بوټیو کښې لمبولے شه او په یو رنګدار به نداکښې به ورله غوپه ورکیدے شوه دے او بوته به دوی "محمودیه" وے نن روځ هم دا رسم شته دینه "بپتسمه" وائی او دا هغه رسم دے چه عیسایان په دے رسم کښې خپل نجات ګنړی

خدای د دے جواب کوی او دا ثابتوی چه هرکله په قومونو کښې باطنی روحانی او اصلی جوند پاتے نه شی او تش بت جوړشی نو هغوی په ظاهری رسمی خبرو باندے زور راولی په عیسایانو کښې مذهب نه وو دوی مذهب صرف دینته وے چه په زیړ رنګ کښې رنګ شی زیړ رنګ او سور رنګ کوم داسے شے چه په دے کښې نجات وی اصل رنګ خو د پاک دین جوند دے چه د مسلمان په رګ رګ کښې موجود وی په دے ظاهری رنګو نو خوجامے او لاس نښے رنګینے شی لیکن په دین اسلام د خلقو زړه او روح رنګیګی او دغه وجه وی چه د مسلمان دم قدم ناسته ولاړه مال دولت او عزت، شپه او روځ د خدائے د حکمونو په تعمیل کښې لګی دا هغه جوند دے چه په دے سره د زړه تسلی، په فقیری کښې بادشاهی، په غم کښې خوشالی حاصلیږی ظاهر پرستی او ظاهرداری د اسلام په تعلیم کښې هیڅ حقیقت نه لری د مسلمان او د کافر په ظاهری اندامونو کښې فرق نشته فرق که دے نو هغه باطنی دے چه مسلمان د توحید په نشه کښې مست وی او کافر د دنیا مال دولت نه عقلمندی وائی د خدائے رسول او د دین مذهب کار نه ناپوهی وائی

د "قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا" شان نزول دا دے چه یهود یانو به وے چه کتاب مونږ ته ستاسو نه مخکښې راکړے شویدے، حمونږ بیت المقدس قبله ستاسو د کعبے نه مخکښې ده په مونږ کښې ډیر پیغمبران راغلی دی دغه وجه ده چه کچرے څوک خاتم النبیین کیدے شی نو هغه به په

مونږ کښې وو، په بنی اسمٰعیل کښې ډېر پیدا کیدل څوک چه عقل کښې نه راځي نو دوی تردید په دے ایتونو کښې کیږی چه څوک نبوت لالچ د دے بنی اسرائیلو نه نیولے او کله چه د پیغمبری تا سو خپل میراث ګڼړئ اخر د دے دلیل څه دے او د خدای د افضل او رحمت ستاسو په خاندان پورے مخصوص ولے دے؟ ستاسو د خدای پاک سره څه خاصه خاندانی خپلولی ده، که ستاسو عملونه ډیر نیک دی چه تاسو پرے د پیغمبری مستحق شوئ ستاسو خصوصیت څه نه معلومیږی ځکه چه وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ څوک او ستاسو یو شان رب دے مونږ هم د هغه مخلوق او تاسو هم د هغه مخلوق یئ، تاسو هم د هغه نه د فضل امید لرئ او مونږ ترهم امیدلی داو پاتے شو عملونه نو لَنَا اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ څوک په عملونو کښې خالص د یو خدای رضا پرته ده او ستاسو په عملونو کښې شرک، ظاهر پرستی، عداوت او نفرت دے نو که پیغمبری په نیکو عملونو وی نو څوک عملونه ستاسو نه ضرور خه وی بنی اسمٰعیل د بنی اسرائیلو نه زیات د رحم حقدار دی،

او بیا ستاسو کښې د انکار داسے ډیر والے دے، او دروغ او الزام داسے تړی چه وایي چه ابراهیم[ؑ] اسمٰعیل[ؑ]، اسحٰق[ؑ]، او یعقوب[ؑ] یهودیان وو یا عیسایان وو، حال دا دے چه یهودیت او نصرانیت د دینه روستو وو، او خدای علام الغیوب د دوی په باره کښې خبر ورکوی چه دوی یهودیان او نصرانیان نه وو بلکه موحدان وو او س تاسو ډیر پوهیږی که خدای، په تورات انجیل کښې چه د حضرت محمد صلے الله علیه وسلم په باره کښې کوم شهادت موجود دو هغه یهودیانو د تعصب په وجه پټ کړے وو او د شهادت پټول خاص کر خدای شهادت پټول ډیر ظلم دے په اخر کښې بیا هغه اصول بیان شه چه په پلرو نو نیکو نوغ ورکو نکو ستاسو غرور په نیکو پیغمبرانو صحیح نه دے تاسو لره سره د خپلو بدعملو د هغوی د سفارش امید لرل ناپوهی

دہ خدای ستا سو د بد عملو نہ خبردار دے پہ قانون جزاء کښې بہ تا سو ضرور سزا
بیامومی تا سو بہ د خپلو مشرانو نیکئ څہ فائدہ نہ رسوی پہ دین کښې نسب او خاندان
لرہ "دخل نشتہ" و اٰخر دعوانا اَنِ الحمدُ للہِ ربِّ العٰلمین

اولہ پارہ پہ فضل د خدای تعالیٰ ختمہ شوہ پہ ورځ د یکشنبې جمادی الآخر ۱۳۶۵ھ

(۱۹۴۵ء)

## حبیبُ الرحمٰن بن مولانا محمود الحسن صاحب مرحوم

اصلی او سیدونکے د کوتر پان، دار الھجرۃ، دار التصنیف و التالیف
روستم ضلع مردان صوبہ سرحد

---

## د خلکتو کتب فروشو سرہ بہ تفسیر بیاموندے شی

(۱) محبوب الرحمٰن، روستم، ضلع مردان

(۲) ماسترخان گل بیرون کابلی دروازہ، منظور عام برقی پریس پېښاور

(۳) حاجی عبد الرحمٰن کتب فروش، مردان

(۴) ارباب حاجی نعمت اللہ صاحب، مکتبہ اسلامیہ چارسدہ

(۵) سرحد بک ایجنسی قصہ خوانی پېښاور

## ھدیہ

پارہ اول بمعہ مقدمہ مجلد درے نیمے روپئ

یوازے پارۂ اول مجلد دوہ نیمے روپئ

# په تفسیر کښې امداد کونکو حضراتو نومونه

| | | | |
|---|---|---|---|
| ۱ | قابل احترام والئ ریاست سوات | ۱۰۰ | روپئ |
| ۲ | قابل احترام مهتر چترال | 〃 | 〃 |
| ۳ | سر نواب صاحب دربند | 〃 | 〃 |
| ۴ | قابل احترام سید غواص باچا صاحب صدر درس قرآن رزیم | 〃 | 〃 |
| ۵ | شیخ محمد اکبر خان برانګ | 〃 | 〃 |
| ۶ | محمد فرید لودهی شیروان | ۴ | 〃 |
| ۷ | عجب نور صاحب تل | ۵ | 〃 |
| ۸ | مدار الله صاحب مردان | ۱۳ | 〃 |
| ۹ | سخاوت شاه بکری بالا | ۴ | 〃 |
| ۱۰ | نورجمال خان کوهاټ | ۱۰ | 〃 |
| ۱۱ | مسمات بادشاهان کوترپان بالی سونا | ۱۰ | 〃 |
| ۱۲ | شرکاء درس قرآن شریف روستم | ۴ | 〃 |
| ۱۳ | حاجی عبد الغفار خان اتمان زائی | ۱۰ | 〃 |
| ۱۴ | امیر محمد کوترپان | ۱۰ | 〃 |
| ۱۵ | مولوی غلام ربانی بکری بالا هزاره | ۳ | 〃 |
| ۱۶ | محترم ریاض الدین هیډ ماسټر طورو | ۵ | 〃 |
| ۱۷ | محمد عثمان طورو | ۲ | 〃 |
| ۱۸ | صاحبزاده فضل رحمن طورو | ۲ | 〃 |
| ۱۹ | ارباب محمد حسین سشن کورټ پېښور | ۲ | 〃 |

Speical thanks to Mr. Israr,
A great man.